# فوق العاده اوسئ

## د غوره، بريالي او خوښ ژوند ۱۰۱ درسونه





لیکوال: رابین شارما
ژباړن: اسماعیل «آشنا»

بسم الله الرحمن الرحیم

## د کتاب پېژندنه

کتاب نوم : فوق العاده اوسئ

لیکوال : رابن شرما

ژباړه : اسماعیل (اشنا)

ایډیټ : حمیدالله حمیدی

چاپ وار : لومړی

د چاپ کال : ۱۳۹۸

د چاپ شمېر : ۱۰۰۰ توکه

خپرندوی : جهان اسلام خپرندویه ټولنه

بیه : ۱۵۰ افغانی

د کتاب د منځ ډیزاین: سیدشریف (افضلی)



انتشارات جهان اسلام

آدرس : کوټه سنګي چوک، هوايي پله ته مخامخ ، آریانا مارکیټ، دیم پوړ.
د اړیکي شمیره : ۰۷۰۷۰۷۰۱۴۰
د برېښنالیک پته : 1jahan.islam@gmail.com

## لړلیک

## د ژباړن خبرې

**(فوق العاده اوسئ) مانا دا چې د معمول پر خلاف اوسئ، د رابین شرما هغه کتاب دی، چې په لوستلو سره یې تاسو کولای شی، په شخصي ژوند او دنده کې د بریا لارې چارې زده کړئ، نبوغ مو را ویښ کړئ او مینه تجربه کړئ، ترڅو خپلو ټولو هغو هیلو ته ځان ورسولای شئ چې په زړه کې مو ځپې وهي.**

په دې کتاب کې رابین شرما خپل نوي افکار په (۱۰۱) درسونو کې په ډېر ساده خو قوي ډول راوړي، چې په زده کولو سره یې تاسو کولای شئ د ژوند له خوندونو څخه برخمن شی، وده وکړئ، خلکو ته خیر ورسوئ او داسې ژوند وکړئ، چې د خلکو زړونو ته لار پیدا کړئ.

کېدای شي تاسو هم له داسې یوه حالت سره مخ شوي وئ، ځینې وخت سړی ناهیلي شي، په خپلو هیلو باور لري، لېټون یې کوي، خو بیا هم نه ورته رسېږي او یا تاسو فکر کوئ چې نه شئ ورته رسېدای. په اصل کې هره پرېکړه او ستاسو هر ګام مهم او د ارزښت وړ دی. تاسو باید د یوه ډېرې ماتوونکي په څېر صبر او

حوصله ولرئ. ډېرې ماتوونکی هره ورځ ډېرې ماتوي، خو ځینې وخت د هغوی یوه ډېره ساده ضربه د دې لامل کېږي، چې ډېره ماته کړي او الماس پکې را ښکاره شي. هغه کسان چې په کارو بارو کې د پرمختګ او د ژوند د ښایست او ښکلار لپاره هڅې کوي، هغوی ته باید ارزښت ورکړل شي او د هڅو درناوی یې وشي.

د دې کتاب لیکوال رابین شرما وايي، په هره تیاره پسې رڼا وي او دا د ژوند قانون هم دی. نو وېره مو له زړه وباسئ، اوړو ته مو خند ورکړئ او استوار ګامونه واخلئ. له ستونزو سره مخ شئ، د حل لار ورته ولټوئ او مبارزه ور سره وکړئ. له ستونزو سره مخ کېدل تاسو قوي کوي او ژوند کولو ته مو هڅوي. بریا د هغه چا په برخه ده چې په لټون پسې یې راوتلي وي.

ژوند په اصل کې یوه انډول او توازن ته اړتیا لري او په دې برخه کې تر ټولو حیاتي یې د ازادۍ او مسؤلیت تر منځ انډول ساتل دي. که غواړئ تیارې ته پېغور ورکړئ، نو شمع روښانه کړئ او د یوه رهبر په څېر ځان را څرګند کړئ. دا مو باید په یاد وي، چې زړور خلک په ځان پسې د خلکو خندا ته ارزښت نه ورکوي او بې ارزښته یې ګڼي. موږ د خپل ژوند مسؤل یو، دا زموږ دنده ده چې

خپلې موخې مشخصې کړو او د رسېدو لپاره يې لاس په کار شو.
د کتاب ليکوال وايي، ما دا زده کړي، چې ژوند تل تاسو هغه ځای ته رهنمايي کوي، چې تاسو يې غواړئ، خو ځينې وخت تاسو دغه څه نه شئ درک کولای. دی وايي د ژوند درس زده کول څه اسانه هم نه دي، زه خپله تر اوسه د دې مدرسې زده کوونکی يم. د نن کار ولې بايد سبا ته پرېږدئ؟، د ژوند د لوبې لوبغاړی ولې چې همدا اوس يې د لوبېدو وخت دی خپله ورتيا او انرژي بل وخت ته وسپموي؟ له ژوند څخه د خوند اخيستو لپاره ولې بوډاتوب ته په تمه ياست؟ اوس د دې وخت را رسېدلی چې د دې کتاب په لوستلو سره خپلې ورځې رنګينې کړئ، د ژوند له ښايستونو همدا نن خوند واخلئ. وخاندئ، مينه وکړئ، هيلې مو را وسپړئ او د رسېدو لپاره يې متې را بډ وهئ. د قانون په چوکاټ کې داسې ژوند وکړئ چې د خپل راتلونکي نسل لپاره يوه الګو اوسئ او په نامه مو افتخار وکړي. نو راځئ د کتاب لومړنی پاڼه را واړوئ.

درنښت

اسماعيل «اشنا»۱.

# خپله غوره اوسئ

وارن بافت[1] داسې نظریه وړاندې کړې ده: "هیڅ داسې وخت به رانشي-، چې تاسې له خپله ځانه غوره اوسی". یو ښه نظر د یوه ښه انسان په اړه. فردي غوره والی به نه وي. هیڅکله به تر تا غوره انسان په نړۍ کې نه وي. ځینې خلک ښایي داسې هڅه وکړي. چې ستا کړنې، کارونه، خبرې او چلن کاپي کړي؛ خو که هرڅه سختې وګالي او ډېرې هلې ځلې وکړي، بیا هم تر تا وروسته دویم غوره انسان به وي. ځکه ته یو خارق العاده او فوق العاده انسان یې. موږ د میلیاردونو انسانانو تر منځ ژوند کوو، چې تاسې هم د دې میلیاردونو له ډلې یو تن یاست، چې نن ژوندي یاست. په دې پورتنیو مواردو پوهېدل تاسې فکر کولو ته اړ باسي، همداسې نه ده؟ بیا دې نتیجې ته رسېږئ چې تاسې یو خاص او ځانګړی انسان یاست، خارق العاده او د لوړ استعداد څښتنان یی. په حقیقت کې دا کومه سیالي نه ده .

[1]- Warren Buffet.

له همدې امله نن به له ځانه سره څه کوئ؟ آیا په خپل ځان کې مو نغښتو وړتیاوو ته وده ورکوئ؟ آیا خپلې ذاتي وړتیاوې لا ډېرې ګرندۍ کوی؟ ایا خپل اصالت څرګندوی؟ یا یوازې هغه څه چې یاست له هغه به لا غوره شی؟ دا یوازې یوه نظریه ده، ځکه بیا داسې وخت وي، چې ته یوه غوره انسان اوسې. همدا نن او که همدا اوس، نه نو کله؟ د لوی فیلسوف هرادتوس[۲] خبره راته یادېږي. هغه به ویل: "ښه به دا وي، چې په پوره زورتیا د خپلو لویو تېروتنو او ماتو منونکي اوسو، نه دا چې د خپلو لویو تېروتنو د وېرې له امله په خپل ځای د نورو بدو پېښو په تمه و اوسو." څومره غوره وینا !

**له دې شېبې پرته، بل هیڅ داسې ښه وخت ستا د غوره والي لپاره نشته.**

[۲]- Herodotus.

## ۲. نامريي ديوالونه (پټ خنډونه)

د لاس انجلس په هوايي ډګر کې ناست وم. هلته د جنرال الکتريک شرکت د کارکوونکو يوې ډلې ته د وينا کولو لپاره تللی وم. وينا مې پرته له کوم عنوانه د رهبرۍ په اړه وه، په دې کار سره هر شرکت ځان له نړيوالو ستنډرډونو سره برابرولای شي، د فوق العاده توب او هغو کارونو په اړه چې بايد هغوی يې ترسره کړي .

تر وينا وروسته مې دېته اشاره وکړه، چې ولې موږ ډېری انسانان د خپل ژوندانه په اصلي برخه کې کوچنی رول لوبوو؟ ولې له بدلونونو ډډه کوو؟ ولې په خپل ځان کې غښتل شوې وړتياوې نه څرګندوو؟ هغه رول چې موږ ته راکړل شوی دی، ولې په هغه سترګې پټوو؟ موږ ولې غوره اوسېدل نه خوښوو؟ د دې ټولو پوښتنو ځواب نامريي دېوالونه يا پټ خنډونه دي .

تېره اونۍ د دې لپاره چې ښه فکر وکړم او روح مې تازه شي، د تفريح او چکر لپاره له ښاره بهر لاړم. د يو کور په چمن کې مې د سپي د تربيه کولو د مؤسسې تابلو وليده، هغه د نامريي دېوالونو يا پټو خنډونو په اړه وه. دا هغه سيستم دی، چې د سپيانو لپاره

يې نـامريي دېوالونـه يـا پټ خنډونـه روښـانه کـړي، چـې سـپيان بيـا لـه هغـه محدوديتـه و نـه وځـي. يـو سـپی بيـا د وخـت پـه تېرېـدو لـه هغـه نـامريي سيسـتم سره داسـې عـادت کېـږي، چـې ان کلـه چـې بيـا هغـه نـامريي دېوالونـه يـا نـه لېـدونکي خنډونـه لـرې هـم شـوي، بيـا هـم دا سـپيان بـه لـه هغـې محـدودې بېـرون نـه وځــي. سـپی خپـل انځـوريز مـاحول د هغـه سيسـتم پـه اسـاس برابـروي. مـوږ هـم همداسـې يـو. څنګـه چـې وده کـوو، بيـا مـوږ پـه منفـي عقايـدو، غلطـو فرضـيو او د خپلـې شـواخوا لـه وېـرو سره عـادت کېـږو. دا ټـول نـامريي دېوالونـه يـا نـه ليـدونکي خنډونـه بلـل کېـږي. بـاور وکـړئ، چـې دا ټـول حقيقـي دي، کلـه چـې مـوږ پـه خپـل کـاري چاپېريـال او د ژونـد پـه چـارو کـې لـه هغـو سره مـخ کېـږو، نـو ځـان پـه شـا کـوو او داسـې فکـر کـوو، چـې هغـه محـدوده دروغ وي؛ لـه همـدې املـه ټـول هغـه شـيان چـې مـوږ لرلای شو او هغـه کارونـه چـې مـوږ يـې کـولای شـو، لـه هغـو ټولـو شـاته پـاتې کېـږو. دا وهـم او تـوهم مـو ريښـتينی ښـکاري خـو حقيقـت نلري. هيله کوو دا هرڅه خپل ذهن ته وسپارئ .

تاسـې دېتـه رابـولم، چـې خپـل نـامريي دېوالونـه او نـه ليـدونکي خنډونـه مـو راپيـدا کـړئ، پـه هغـو پـوه شـئ، پـه پـام کـې يـې ونيسـئ، ځان ورسره مـخ کـړئ او حـل يـې کـړئ. کلـه چـې څـوک لـه تاسـې سره

مقابله کوي، نو هڅه وکړئ د خپلې تجربې او وړتیا له اړخه ور سره مخ شی. ستاسې ژوند باید په خارق العاده ډول تجربه شي، ځکه له هغه څه چې تاسې ځان خلاصوئ، له هغه تښتېدلای نشئ. له ښېګڼو سره مینه وکړئ ځکه ښېګڼې تاسې له آسمانه هم لوړوي .

---

**لکه څنګه چې موږ وده کوو، نو د خپل خوا او شا نړۍ او چاپېریال له منفي عقایدو، غلطو فرضیو او دنیوي وېرو سره عادت کېږو. دا ټول زموږ نامریي دېوالونه یا نه لیدونکي خنډونکي ګرځي.**

---

## ۳. د سادګۍ ځواک

زه لـه خپلـو ماشـومانو ډېـر څـه زده کـوم. نـه یـوازې دا چـې هغـوی زمـا اتـلان دي، هغـوی زمـا دوه غـوره ښـوونکي هـم دي. هغـوی پـه هـره شـېبه کـې ماتـه ژونـد را ښـودلی. هغـوی لـه ماسره داسـې مرسـته کـړې، چـې زه ژونـد تـه د یـوې کیسـې او یـوې پېښـې پـه څېـر وګـورم. هغـوی ماتـه دا راښـوولي، چـې څنګـه خپـل زړه را پرانیـزم، هغـوی ماتـه د سـاده ژونـد کولـو ځـواک راښـوولای دی. دې وختـو کـې زه یـواځې د سـادګۍ پـه لټـه کـې یـم. سـادګي د هرڅـه پـه اړه صـدق کـوي. سـادګي د هغـو کسـانو لپـاره ده، چـې هغـوی رهـبران دي. سـادګي د هـر هغـه چـا لپـاره ده، چـې کـار کـوي. سـاده ګـي د سـاده خلکـو لپـاره نړیوالـو سـټنډرډونو تـه د رسـېدو لپـاره لـه نـورو خلکـو او شرکتونـو سره د مرسـتې اړونـد افکـار او اندونـه دي. زه فکـر کـوم، سـاده‌ګي ډېـر قـوي ځـواک دی. د ګوګـل یـو شریـک سرجـي بـرین[۳] وایـي، چـې د دې شرکـت د بریـا او کامیـابۍ یـو لـوی لامـل لـه سـاده

[۳] Sergey Brin.

اوسېدو يې سرچينه اخلي، چې زما زوی کلبي[٤] زما د خبرو موضوع ګرځوي.

څو اونۍ مخکې نيويارک ته لاړم. دا هغه سفر و، چې ډېره موده مخکې مې د دې سفر لپاره نقشه جوړه کړې وه. دا سفر مې د زوی د ديارلسمې کليزې په وياړ و. د سوهو[٥] سيمې ته د فاو شوارتس[٦] مغازې ته د لوبو د سامان پېرلو ته لاړو. د برډ[٧] په هوټل کې مو يوه ښه ناشته وکړه (دا هوټل په نړۍ کې زما د خوښې وړ هوټل دی). د ويکډيا[٨] يو غوره تياتر مو وليد. موږ زوی او پلار يو ځای يوه ډېره ښه رخصتي او د خاطراتو نه هېرېدونکې شيبې درلودې.

د يکشنبې په شپه د بېرته راګرځېدو پر وخت مې له خپل ځوان ملګري وپوښتل؛ "د اونۍ د پای په دې رخصتيو کې تر ټولو غوره شی څه و؟" هغه تر لږ شېبې فکر وروسته يې وخندل او بيا يې وويل: "پلاره، هغه هات ډاګ چې پرون دې ماته د سرک په سر

[٤] Colby

[٥] So Ho

[٦] FAO Schwarz.

[٧] Bread.

[٨] Wicked.

واټ کې واخیست هغه ډېره غوره و." دا بېلګه د سادګۍ ځواک راښيي .

---

**بریا له سادګۍ رامنځته کېږي.**

---

## ۴. دومره ښه اوسی چې د خلکو هېڅ هېر نه شی

نـامتو ټـوکمار او کمیـډین اسـتیومارتین[۹] ځوانـو ټـوکمارو او کمیـډینانو تـه داسـې نصیحت کـوي: "هـومره ښـه و اوسـئ، چـې هیڅـوک هـم تاسـې لـه پامـه و نـه غورځـوي" دا جملـه مـې ډېـره زیاتـه خوښـېږي. ژوند له ټولـو زیارکښـو انسانانو سره مینـه لـري. کـه هرڅـه ژونـد تـه ډېـر وخـت ورکـړئ، تاسـو تـه بـه پـه هماغـه کچـه نېکمرغـی در کـړي. کلـه چـې پـه خپلـه کـار کـې ښـه وی او د غـوره اوسـېدو پـه لټـه کـې اوسـئ، نـو دا ناشـونې ده، چـې تاسـې بـه پـه دې برخـه کـې بریـالي نـه وی. د ګریتفــول ډېډ[۱۰] د موسـیقۍ ډلـې یـوه غـړي جـري ګارسـیاویلي: "تاسـې بایـد هڅـه ونـه کـړئ، چـې وغـواړی پـه خپـل کـار کـې تـر ټولـو غـوره و اوسـئ، بلکـې تاسـې بایـد داسـې هڅـه وکـړئ، چـې هغـه یوازینی کس اوسئ چې هغه کار ترسره کوئ ".

کلـه مـوږ نـاهیلي کېـږو، زمـوږ لـه یـوه داسـې حالـت سره مـخ کېـږو. سـختې هڅـې کـوو، پـه خپلـو هیلـو بـاوري یـو او پـه خپلـو هیلـو پسـې ګرځـو، خـو هغـو تـه نـه رسـېږو، یـا همداسـې نـه تـر لاسـه کېـدونکې

[۹] Steve Martin.

[۱۰] Grateful Dead

ښکاري. هره پړېکړه ډېره مهمه ده، هر ګام مو مهم دی. ژوند په خپله لار روان وي، نه دا چې زموږ په لار. صبور او ډاډه اوسئ. د هغه سنګتراش په څېر و اوسئ، چې ټوله ورځ ډېرې تراشي او بلاخره یوه ساده ضربه هغه ډېره ماتوي او سپین زر پکې راپیدا کوي. لېوال او مینه ناک اوسئ. زیارکښ او فداکاره خلک، چې په خپل کار کې ډېر غوره وي، هغوی هیڅکله د چا له پامه نه غورځي او نه د چا هېرېږي. دا ډېره جدي مسله ده.

د سټیو مارتین دي غوره لیډلوري په ما ډېر زیات اغېز وکړ او زه تري متاثره شوم؛ "هومره ښه و اوسئ، چې له پامه و نه غورځئ" پیټر دروکر چې د مدیریت د برخې استاد دی، هغه بیا دا اصل په یوه بله ښه بیانوي او وایي: "په خپل کار کې یا غوره اوسئ، یا هم ځان تري خلاص کړئ" دا فکر او فلسفه په نړۍ، ټولنه، کار او هر ځای کې عملي کړئ. د خپلو وړتیاوو او ظرفیتونو په کارولو سره به تاسې ډېره لویه ګټه تر لاسه کړې وي.

---

**ژوند، په ټوله کې عادل دی، تاسې پرې باور وکړئ.**

---

# ۵. د بریا د پراختیا اصل

یو ډېر قوي فکر او نظریه شته، چې ښایي ستاسې په ژوند او کار او بار کې بدلونونه رامنځته کړای شي. که تاسې هغه فکر او نظریه د ځان یوه برخه وبولی، نو د ژوند د پرمختګ پر مسیر مو د ماتې نه منلو او مقابلې ته چمتو کوي. له وېرو سره مخ شئ، څو د غوره اوسېدو چانس له لاسه ورنکړئ. د دون[11] په کتاب کې د فرانک هربرت خبرې راپه یاد شوې چې وايي: "زه باید و نه ډار شم، وېره او ډار د فکر قاتل دی، وېره یو کوچنی مرګ دی، چې د بشپړې نابودۍ لاملېږي. زه له ویرې سره مخ کېږم او پرېږدم، چې له ما تېر شي. کله چې له ما تېر شو نو خپل ضمیر سترګې پرانیزم چې مسیر او لار وګورم، زه په هغه ځای کې پاتې کېږم، چې هلته وېره او ډار رسېدلی وي ".

هغه چارې چې تاسې یې ترسره کېدل اړین بولی هغه باید ترسره کړئ. په دې برخه کې به تاسې د یوې ډېرې حیرانوونکې پېښې شاهدان اوسئ: لومړی دا چې په دې به پوه شئ، چې هغه وېره

---

[11] Dune.

له یو وهم پرته بل څه نه و. او دویم دا چې تاسې به د خپلې مېرانۍ لپاره به یوه داسې ډالۍ درکړل شي، چې هېڅ تمه مو یې نه درلوده. د هرې وېرې او هر ډار تر شا ډېرې ښې ډالۍ او انعامونه پټ وي، چې د شخصیتي ودې، پر ځان باور، پوهې او... ټولو اړوندېږي. ما دا هرڅه ځو ځو ځله لیدلي دي. زه فکر کوم، چې دا د ژوند قانون دی؛ له همدې امله د وېرې په لور ورشئ، په ډېر قوت سره یې پیل کړئ، ورو او دوامداره رفتار ډېرې بریاوې له ځانه سره لري، او هغه بریا او کامیابي چې تاسې یې لایق یاست هغه ورو ورو څرګندېږي، په داسې حال کې چې تاسې ربښتیا هم ډېره اړتیا ورته لرئ.

---

**د وېرې او ډار د هرې دروازې تر شا، ډېرې ښې ډالۍ او انعامونه پټ دي.**

---

## ٦. غوره رهبر هرو مرو ښکلي بوټان نه لري

په يو غوره مشر- او رهبر د بدلېدو لپاره کومو لوړو او قوي بوټانو ته اړتيا نلرو. هيله کوم دا په ياد ولرئ، چې مشري او رهبري يوازې يو مقام نه دی، بلکې يو ډول ځانگړې حالت دی. بلکل دا هغه رهبري ده، چې عنوان نلري، مشري او رهبري يعنې پرته له دې چې ځان قرباني وگڼئ نړيوالو ستندردونو ته ځان رسول او د شخصي- مسئوليتونو منل. تاسې په خپله کاري حوزه کې د غوره اوسېدو او د ښو اړيکو د رامنځته کولو پر اساس د نورو لپاره يو ښه سرمشق اوسېدلای شئ. د کتاب له دې برخې زما هدف دا دی. چې د ورو کارونو ترسره کول د دې لپاره يوه پيلامه او سرچينه ده. چې تاسې لوی کارونه څرنگه ترسره کوئ او دغه راز د وړو کارونو د ترسراوي په برخه کې په منځني حد کې پاتې کېدل په لويو کارونو کې ستاسې د منځني حد پاتې کېدو لاملېږي.

که ستاسې کارځای يا کور مرتب وي، نو په ډاډ سره ويلای شم چې ستاسې ژوند هم منظم دی. که تاسې د ځينو مناسباتو او جزئياتو لکه د ملگرو د زوکړې ورځې، مبارکی پيغامونو لېږلو، مننې کولو او دېته ورته مناسباتو په يادولو او پام کېدو په برخه کې ډېر بريالي وی، نو زه

داسې انګېرلای شم چې تاسې د لويو پروژو او کارونو د جزئياتو د کنټرول او ساتنې په برخه کې هم بريالي ياست او ډېر ارزښت ورکوی. که کاري ماحول مو ډېر پاک وي، هغه خدمات چې پېرودونکو ته يې وړاندې کوئ، په هغو کې به هم ښه منظم او پاک وی. زه په هر کار او هره برخه کې د هغې اړوندې مؤسسې او برخې د پاکۍ د سيستم او خدماتو په اساس د هغې ادارې په اړه نظر څرګندولای شم. د پاکوالي يو ښه او منظم سيستم دا څرګندوي، چې مونږ پاکۍ او صفايي ته ارزښت ورکوو او هغ ارزښت زمونږ په کړنو او فعاليت کې هم څرګندېږي. ځکه واړه موضوعات او وړې خبرې په اصل کې ډېر لوی او قوي موضوعات او خبرې له ځان سره لېږدوي؛ له همدې امله جزئياتو ته ډېر پام وکړئ، او له وړو وړو موضوعاتو سره په جديت چلن وکړئ او ډېر تمرکز پرې وکړئ. ډېر بريالي او مخکښ شرکتونه او خلک همدا ډول وي، ځکه هغه څه چې مونږ تاسې يې ډېر واړه بولو هغه په رښتيا هم دومره واړه او ټيټ موضوعات ندي .

---

**د سادګۍ په هکله زما نظر دا دی، چې: د وړو کارونو ترسره کول د لويو کارونو د تراسراوي سرچينه او پيلامه ده.**

---

# ۷. هر څه په غور واورئ

د نـامتو انځـورگر بـروس مـاو[۱۲] دا مهمـې خـبرې ولـولئ چـې زه تاسـې ته وایـم. هـر هغـه څـوک چـې ستاسـې کـړی تـه را ننـوځي نـو لـه ځانـه سره یـوه عجیبـه او پیچلـې نـړی راپیـدا کـوي. د هغـو د اړتیـاوو، غوښـتنو او موخـو پـه برخـه کـې د یـو شـمېر نامحسوسـه جزئیـاتو پـه اورېـدو سره مـوږ د هغـو نـړی پـه خپلـه نـړی کـې رابنـکېلوو. پـه دې برخـه کـې هـیڅ یـو لـوری بـه هـم بیـا هغـه څـه نـه وي، چـې تـر دې دمخه و .

مـوږ د خپلـو خـبرو پـه اسـاس جـوړېږو. هغـه نظریـې چـې مـوږ یـې اورو او هغـه خلـک چـې ورسره گـورو، هغـوی تـول پـه مـوږ اغېـز کـوي. (یـو بنـه نظـر: هـر هغـه چـا سره چـې گـورئ، هغـه لـږ تـر لـږه پـه یـو څـه پـوهېږي چـې تاسـې پـه هغـه نپـوهېږئ، مـه پرېـږدئ تـر یـو څـه زده کولـو پرتـه در څخـه لاړ شي.) د خـبرو اورېـدل او غـوږ نیـول د فـردي او شـغلي ژونـد لپـاره یـو ډېـر مهـم مهـارت دی. مشـران او رهـبران پـه ډېر عجیب او نـه منـونکي شـکل هرڅـه تـه غـوږ نیسـي. مـاو بیخـي سـم

[۱۲] Bruce Mau.

وایـي: "کلـه چـې پـه ډېـره ژوره توګـه خپـل مخاطـب تـه غـوږ نیسـو، نـو هغـوی هـم پـه هغـه څـه چـې پـوهېږي پـه هغـه کـې زمـوږ د شـاملېدو اجـازه راکـوي." مـوږ پـه یـوه داسـې حالـت کـې یـو ، چـې هـر څـه زده کـړای شـو، وده وکـړو او خپـل تـر ټولـو غـوره او ښـه مقـام تـه ورسـېږو او کـه تاسـې هـومره نیکمرغـه و اوسـئ، چـې لـه یـو ښـه او مناسـب کـس سره پـه خـبرو بوخـت وی؛ نـو پـه یـو ښـه او مناسـب وخـت کـې دا مکالمــه مناســبه او شــوني ده. نــو پــه دې سره بــه ستاســې فکــر او احسـاس د تـل لپـاره بـدل کـړي، چـې د هغـوی ځـانګړی احسـاس او کیفیت تاسـې تـه هـم لېږدول کېږي. بیـا بـه تاسـې هیڅکلـه هـم هغـه څوک پاتې نشئ، چې تر دې دمخه وئ.

---

**هر هغه څوک چې تاسې ورسره ګورئ، هغه لږ تر لږه په یو داسې څه پوهېږي، چې تاسې پرې نپوهېږئ؛ نو هیڅکله له هغه د کوم څه له زده کولو پرته مه تېرېږئ.**

---

## ۸. د ډیوېډ په څېر موخې وټاکئ

داسې یو څوک پېژنم، چې هیله منـد یـم دربـغـی تاسـې هغـه لیـدلای شـوای. یـو وخـت د ټـولنیز اشـتغال او رهـبرۍ پـه هکلـه یـو کنفـرانس کې د ګډون په موخـه مکزیکوسیټي تـه پـه یـوه سـفر کـې لـه هغـه سره معـرفي شـوم. هغـه ماتـه د خپـل داسـتان پـه بیـانولو سره ډېـر ټکـان راکـړ. د هغـه د جرائـت او مېړانـې پـه مقابـل کـې ماتـه ځـان بیخـي هـیڅ ښـکاره شـو. ډیویـډ مېجیـا پـه غـوږ نـه اورېـدل. هغـه همداسـې کـوڼ دنیـا تـه راغلـی و. ډاکترانـو داسـې وړاندوینـه کـړې وه، چـې هغـه بـه پـه ماشـومتوب کـې د اورېـدو د حس لـه اړخـه لـه ډېـرو سـتونزو سره مـخ شي او ښـایي پـه ډېـر کـم عمـر کـې بـه لـه دې نـړۍ سـترګې پټـې کـړي. پـه ځـوانۍ کـې یـې ډېـر زیـات عملیاتونـه کـړي و، ډېـر دردونـه یـې زغمـلي و. دغـه راز د ښـوونځي پـه وخـت د ملګـرو همصـنفیانو او خلکـو لـه لـوري د خپـل ظـاهري حالـت لـه املـه ډېـر زیـات مسـخره شـوی و؛ خـو ډیویـډ لا هـم قـوي پـاتې و. سـتاسـې لـویې او عظمـت زیـاتره وخـت د هغـه څـه پـه پـام کـې نیولـو سره ټاکـل کېـږي چـې آیـا تاسـې د ژوندانـه لـه سـختیو او مـاتو څخـه بریـالي راوځـئ یـا دا چـې مـاتې خـورئ. ډېویـډ ځانتـه ډېـرې مـوخې وټـاکلې و او سـخت کـار بـه

یې کاوه. تل به یې په ځان باور درلود، ځکه په دې پوهېده چې د ځانګړو او خارق العاده کارونو لپاره جوړ شوی دی.

ډیویډ مجیا د یو ډېر قوي فکر، یو لوی زړه، قوي روح او ښه مور او پلار په وسیله روزل شوی و. مور او پلار به یې هره ورځ هغه ته ویل؛ که په خپل ژوند کې غوره او ښو برخو پسې وګرځې نو هغو ته به ورسېږې. هغوی به ډیویډ ته جرأت ورکاوه او داسې ډاډ به یې ورکاوه چې ځان کوم قرباني و نه بللي. هغه ته یې ویلي و، چې د ستونزو په برخه کې یې هم د موقعیتونو او لارو چارو پسې وګرځي او هغه هم دا کار په ډېر ښه مهارت او ښه توګه ترسره کړی دی .

هغه سړي چې ما په مکسیکو سیټي کې ورسره ولیدل، هغه یو رهبر دی، یو مشر دی، یو قهرمان دی، الهام ښوونکی شخص دی. ولې؟ ځکه هغه څه چې نړۍ هغه ته ورلېږل هغه یې واخیستل او هغه یې بدل کړل، هغه هم په داسې یوه نړۍ کې چې موږ زیات شمېر خلک خپله هره ورځ په دې فکر تېروو، چې ولې زه؟ د دې هرې بدبختۍ لپاره ولې زه؟ هغه اوس وخت مصنوعي غوږونه لري. روغ رمټ او د ښې روغتیا خاوند دی او په خپله کاري برخه کې هم ډېر بریالی دی. هغه مینې او خوښۍ ته

رسېدلی دی. هغه د ډېرو زیاتو خلکو په پرتله ښه شناخت او ښه ډېر ملګري لري. هغه د هغو ټولو خلکو په منځ ډېر زیات خلبږي چې هغوی تل ګیلې او شکایتونه کوي او له خپله ژونده ناراضه دي. تاسې تل تیارو او سختیو پسې ډېرې بدې خبرې کولای شئ؛ خو د لمنځه وړو لپاره يې یوه ډېوه هم بلولای او د یو مشر- یا رهبر په څېر عمل هم کولای شئ. ژوند د هغو غوښتنو او ټاکنو په منځ کې راګیر شوی، چې ستاسې لپاره برابر شوي دي. ستاسې ټولې ورځنۍ پرېکړې، ورځ په ورځ، اونۍ په اونۍ، میاشت په میاشت او کال په کال ستاسې برخلیک ټاکي. ډیوېډ مېجیا په دې پوهېږي چې څنګه له خپلو امکاناتو او خپلو انتخابونو څخه د ځان د بریا او پرمختګ لپاره ګټه واخلي تاسې همداسې کولای شئ.

---

**په تیارو او سختیو پسې ډېرې بدې خبرې کولای شئ؛ خو د لمنځه وړو لپاره يې یوه ډېوه هم بلولای او د یو مشر یا رهبر په څېر عمل هم کولای شئ.**

---

## ۹. همدا اوس لاس په کار شئ

نن سهار د مېک جېگر[۱۳] چې سندرې ویونکی دی د هغه په آواز راویښ شوم. د هغه د آواز انګازې زما په ذهن کې په څپو شوې: د ژړا لپاره کوم دلیل نلرې، هرڅه تېرېږي. دا رښتیا ده، ژوند په ډېره بېړه روان دی.

هغه کار چې نن یې ترسره کولای شئ، ولې هغه سبا او بل وخت ته پرېږدئ؟ ولې په دې لویه اساسي برخه کې خپل رول بل وخت پورې اړوند بولو؟ له ژونده د خوند اخیستو او دمې کولو لپاره ولې باید د عمر ډېربدو او بوډا کېدو ته په تمه شئ؟ تېره ورځ مې د یوې ځوانې ښځې په اړه ولوستل، چې هغه د خپل راتلونکي عمر او بوډایۍ وخت ته د پیسو ذخیره کولو په اندېښنه کې وه. هغې وویل: "غواړم په دې ډاډه شم، چې په مناسبه اندازه پس انداز لرم، په دې توګه کولای شم په راتلونکي وخت کې په مناسبه انداز پیسې ولرم، چې بیا هغه وخت له ژونده خوند واخیستلای شم. نېوهېږم ولې باید تر بوډایۍ او کمزوري کېدو صبر وکړم، چې بیا مینه ناک ژوند وکړو؟ "

[۱۳] Mick Jaggar

زه اصلاً له دې منکر نه یم، چې تاسې د راتلونکي لپاره د پلانونو په ارزښت پوه نشئ او فکر ورته و نکړئ. د راتلونکي په اړه فکر وکړئ او د یو ښه مناسب ژوند لپاره چمتو شئ. د تل په څېر دا یو ډول تعادل دی. خپل پلانونه عملي کړئ. د تقاعدېدو وخت لپاره مو پس انداز وکړئ. د ژوند لپاره ستراتېژي ولرئ؛ خو د دې هرڅه سربېره په همغه شېبه کې ژوند وکړئ، لوبې وکړئ، له هرې ورځې خوند واخلئ. خو په ډېره هوښیارانه ډول! د عربي متحده اماراتو هوايي ډګر یو سوداګریز پیغام لري، چې پوښتي: "وروستی ځل هغه کار چې په لومړي ځل مو وکړ، هغه کله و؟" څومره هوښیارانه!

نو خپلې ټولې ورځې مو خوندورې کړئ. د ژوندانه غوره شېبې همدا اوس ترلاسه کړئ، ډېر وخاندئ، مئین شئ، موخې وټاکئ. خو که په داسې موقعیت کې یاست چې هره ورځ مو سترې او یو ډول ده، نو مخه یې ونیسی او ژر مو د ژوند بڼه بدله کړئ، ځکه ژوند په ډېره تېزۍ روان دی، په ډېر تېزۍ!

له ژونده د خوند اخیستو او دمې کولو لپاره ولې باید د عمر ډېرېدو
او بوډا کېدو ته په تمه شئ؟

## ۱۰. ښه او ځانګړي اوسئ

زه له تاسې پوښتم: "ولې د شرکتونو د کاري قوانینو په برخو کې، د ښه اوسېدو تر عنوان لاندې کومه تبصره نه لیدل کېږي." په دې هکله ډېر زیات موارد موجود دي، چې د ورځنیو کارونو ترسراوی ټاکي؛ خو داسې ښکاري چې ښه اوسېدل یواځې په حاشیه کې دي، یوه ضمیمه، یو اضافي فکر او... په دې هرڅه زه نېوهېږم.

زه په دې باور یم، چې په زیاتره برخو کې ښه اوسېدل د هر مخکښ او مترقي شخص او شرکت اصلي رګ دی. له همکارانو سره ښه اوسېدل د دې لامل کېږي چې هغوی هره ورځ په شوق د کاري ماحول په لور راشي، غوره او لوړ استعدادونه جذب کړي. هغه شرکتونه چې تاسې ته خدمات وړاندې کوي له هغوی سره ښه اوسېدل د هغه شرکت د کار لپاره ډېره غوره او ښه وي. له پېرودونکي سره مو ښه اوسېدل هم له دې امله اړین وي، چې هغه بیا بیا تاسې ته راشي. دا ښه اوسېدل د دې لپاره تر ټولو ښه لاره ده، چې شاوخوا د ښو او کارکوونکو کسانو په وسیله ډک کړئ. ښه اوسېدل د داسې ډه همکاري جوړوي چې کلونه کلونه

بـه دوام کـوي. د بېلګـې پـه توګـه: تېـره ورځ د خپلـې سـيمې د خـوراکي توکـو پلـورنځي تـه لاړم. د شـپې لپـاره مـې د غوښـې او سـبزۍ د آمـاده کولـو هـوس وکـړ او غوښـتل مـې خپـل ذهـن تغذيـه کـړم. مـا داسـې پرېکـړه وکـړه، چـې لـږ څـه سره کـړې پروسـس شـوې غوښـه او سره کـړي پروسـس شـوي نخـود واخلـم. د هغـو غوښـتنه مـې وکـړه، يـوې ښـکلې ځـوانې نجلـۍ زمـا غوښـتنه نـوټ، ماتـه موسـکۍ شـوه او بيـا يـې راتـه وويـل: "زمـوږ د پلـورنځي قـانون خـو داسـې دی، چـې د پـوره پروسـس شـوې انـدازې غوښـې پلـورل دي؛ خـو زه هڅـه کـوم چـې ستاسـې د غوښـتنې اړونـد انـدازه يـې درتـه چمتـو کـړم." يـوه دقيقـه وروسـته مـې خپـل غوښـتل شـوي خـوراکي تـوکي ترلاسـه کـړل او هغـې ښـکلې کـارکوونکې جلـۍ پـه موسـکا او سـترګې وهلـو سره راتـه وويـل: "داسـې خـوراکي تـوکي مـې درکـړل، چـې تاسـې بـه پـرې ميـين شـئ." هغـې لـه ماسره ډېـره زياتـه مرسـته وکـړه او زه يـې ځـان تـه جـذق کـړم. لـه مـاسره ډېـره مهربانـه وه، پېرودونکـو تـه د خـدماتو وړانـدې کولـو يـوه لويـه او خونـدوره تجربـه وه. ځکـه هغـه ډېـره زياتـه ښـه کـارکوونکې وه. تاسـې فکـر وکـړئ، چـې نـن بـه بيـا زه چېرتـه د خـوړو لپـاره تلـی وم؟ بلکـل! همغـه هوټـل تـه بيـا ور وګرځېـدم؛ ځکـه د نورو ټولـو انسـانانو پـه ځېـر لـه هغـو کسـانو سره راکـړه ورکـړه کـوم، چـې

لـه مـاسره ښـه رويـه ولـري. څـوک بـه د ښـو انسـانانو د پرمختـګ غوښـتونکي نـه وي؟ ښـېګڼو او ښـه والي زه ډېـر وفـادار کـړم. د هغـې ښـکلې کـارکوونکې دې کـار لـه مانـه د هغـوی يـو دايمـي پېرودونکـی او يـو مُبلـغ جـوړ کـړ. د نړيـوال سـتندرد لرونکـو شرکتونـو لپـاره ښـه اوسېدل ډېر زيات ارزښت لري. هره ورځ ښه و اوسه.

---

**ښه اوسېدل تل پاتې اړيکې رامنځ ته کوي.**

---

## ۱۱. په اصل کې هېڅ تېروتنه نشته

دا ډېره آسانه ده، چې د غلطيو او تېروتنو لپاره ځان ملامت کړئ. مونږ انسانان په اوس وخت او د يوې ښې او خوندورې راتلونکې لپاره په تېر وخت کې ژوند کوو. ځينې خلک زيات وخت د هغه کارونو يا ماتو په فکر کې وي، چې ډېر مخکې يې ترسره کړي يا تجربه کړي وي. څومره خواشينونکې! د خواشينۍ ځای دی، چې ژوند ضايع شي.

اجازه راکړئ په دې برخه کې يوه پوښتنه وکړم: ايا د غلطۍ او تېروتنې په نامه هم کوم څه شته؟

لومړی: هيڅوک هم داسې هڅه نه کوي چې غلطي وکړي يا ماته وخوري. کلونه کلونه هره ورځ له خوبه راپاڅېږو، ژوند کوو؛ په هغه څه چې پوهېږو، هغه ړتياوې چې مونږ يې لرو او دا چې د ژوندانه په کوم پړاو کې يو، په دې هره برخه کې مونږ خپله تر ټولو غوره او ښه هڅه او زيار کوو، خو هغه څه چې مونږ يې غلط او ناسم بولو، هغه زمونږ د زده کړې لپاره يوه لويه سرچينه او منبع ده. دا يو موقعيت دی، چې لا ډېره پوهه او قوي تجربې ترلاسه کړو. داسې

تجربې چې زموږ د کړنو، احساساتو او اعمالو د ښه کېدو او زموږ د غوره اوسېدو لامل کېږي. هر هغه څه لکه ښېگڼې، ستونزې او... چې ستاسې په ژوند کې پېښ شوي دا هرڅه له دې امله ضرور و، چې له تاسې هغه څوک او هغه شخصیت جوړ شي، چې اوس يئ. نو دا هرڅه ولې باید غلط وګڼو؟ ښایي هیڅ غلط څه نه وي. ښایي هغه موارد چې موږ یې غلط بولو، هغه ټول داسې درسونه او عبرتونه وي، چې له موږه پټ دي او ښایي هغه څوک چې د ماتې او غلطیو ډېرې تجربې لري هغه تر نورو ډېر مخکښ او بریالی شخص وي.

---

**هر هغه څه لکه ښېگڼې، ستونزې او... چې ستاسې په ژوند کې پېښ شوي دا ټول له دې کبله اړین و ، چې له تاسې هغه څوک او هغه شخصیت جوړ شي، چې اوس یاست.**

---

## ۱۲. د سبا تشه پانه

نن نیمه شپه به یوه ډېره حیرانوونکې ډالۍ ولری: یو نوي ۲۴ تازه ساعتونه، دا ساعتونه ځانګړي او نه خلاصېدونکي دي. دا شېبې ستاسې لپاره د دې فرصت رامنځته کوي، چې خپله مېرانه، ښې کړنې او یو ډول ملګرتیا تجربه کړئ، چې لوړو درجو ته د رسېدو لپاره له تاسې یو استاد جوړ کړي. د خندا فرصت هم تاسې ته درکول کېږي. دا شېبې او دا ساعتونه د ارزښتونو د جوړاوي او هیلو ته ستاسو د رسېدو لپاره دي. اوس نو که تاسې منې یا یې نه منی، خو همداسې ده او سبا ورځ مو یو خارق العاده ورځ ده، هرڅوک دا ورځ ترلاسه کولای نشي- زه په دې نږدې وختو کې له قزاقستانه خپل وطن ته را وګرځېدم. هلته مې ډېر ښه وخت تېر کړ. الماتا یو ډېر ښکلی ښار دی، چې په غرونو پوښل شوی د منو په ونو پوښل شوی خلک یې هم ډېر ښه آرام، خونګرمه او با فرهنګه دي. کله چې ما هلته د رهبرۍ اړوند سیمنار وړاندې کړل، نو هغه ماحول ماته ډېر خوندور و. کله چې بېرته د اوږد پرواز له لارې خپل وطن ته راوګرځېدم، د پیتر مایل "یو ښه کال" کتاب مې ولوست. د دې کتاب له لوستو مې ډېر خوند واخیست

او په دې فکر وم، چې دا کار زما لپاره ډېر آرام بښوونکی او ګټور دی او رښتیا هم همداسې و. د رخصتۍ په وخت د دې کتاب لوستل ډېر ښه وي. په دې کتاب کې یوې جملې زما نظر ډېر ځانته واړاوه: "تر دې چې ټول عمر دې چاته سر ټیټ وي، ښه به دا وي چې یو ځل په هسک سر ووژل شې." دا یو ډېر قوي عبارت دی. پیتر مایل ډېره مننه چې زه دې په دې ډېره مهمه موضوع پوه کړم.

نو سبا ورځ دې یوه ځانګړې ورځ کړه، نه بیخي فوق العاده یې جوړه کړه. لکه د هنر د یوې برخې په څېر چې بیا له خپلو لمسیانو سره یې هم په اړه خبرې وکولای شې، دا ډېره حیرانوونکې ده چې یو شخص په یوه ورځ کې څه کارونه ترسره کولای شي. چې دا هر یو کار ښايي زموږ د ښه او غوره کېدو لپاره فرصت واوسي.

تر دې چې ټول عمر دې چاته سر ټیټ وي، ښه به دا وي چې یو ځل په هسک سر ووژل شې

## ۱۳. مننه او شکر کول مو عادت وګرځوئ

څه موده مخکې د سي ان ان په تلويزيوني شبکه کې د (لاري کينګ لايف) په خپرونه کې ښاغلي کينګ له کارولين توماس سره مرکه درلوده، چې هغې د خپلې خبرې ډېره برخه يې د خپل مخکني ملګري (بای فرنډ) د وسلې د ډز له امله زيانمنه شوې وه. هغه په پانسماني مخ په هغه خپرونه کې ناسته وه، د مخ يوه خوا يې سمه وه، ډېر زيات جرأت يې درلود، ما په ټول ژوندکې هم داسې جرأت ليدلی نه و.

دا صحنه د دې لامل شوه، چې زه ډېر شکرونه ادا کړم. ډېر عجيبه قوي فکر يې درلود! هر هغه شی چې ته په خپل ژوند کې هغه ته ارزښت ورکوې په هماغه کچه يې ارزښت لا ډېرېږي. په هر هغه څه چې ته فکر او ټينګار کوې په همغه کچه وده کوي. د کوم څه چې مننــدويي کــوې او شــکر باســې ورو ورو ډېرېــږي. دا چــې روغ رمټ يې له دې امله ډېر شکر ګزار اوسه. د کورنۍ لرلو، د ډاليو تر لاسه کولو، د ملګرو لرلو او... له کار او ژونده دې ډېر زيات مننــدوی اوســه، پــه دې توګــه ســتا فکــر هــم بــدلېږي. د خپــل ژونــد برکتونه وينې. د ژوندانه د چارو او پلانونو نوټ کول ماته ډېر زيات

ارزښت لري. تاسې ته زما توصیه دا ده، چې پنځوس هغه شیان لست کړئ، چې تاسې یې د لرلو لپاره مننـدوی یاستئ. (هو پنځوس)

لس لومړني موارد یې ډېر آسانه دي: هغه کسان چې ته مینه ورسره لرې، دنده، کور او... د دې هرڅه اساس او بنیاد ته رجوع وکړه، ژور فکر وکړه، له خپلې ورځنیا د دې لپاره چې انګلیسي- خبرې کولای شې د دې هرڅه لپاره ډېر مننـدوی اوسه. د دوه سترګو لرلو له کبله د خدای شکر ادا کړه، دا چې یو روغ زړه دې نصیب شوی له دې امله له خدای پاک مننه وکړه، دا چې په یوه نا امنه سیمه کې ژوند نه کوې د دې لپاره هم مننـدوی اوسه. له نورو خوا او شا خلکو دې مننه وکړه. له بزګرانو څخه مننه وکړه چې د هغو د زحمتونو له برکته تاته خواړه او میوې برابرې شوې دي، د هغې فابریکې له کارکوونکو مننه وکړه چې تاته یې موټر جوړ کړی. د هغه پلورنځي له مسئوله مننه وکړه چې ته دې اړتیا وړ توکي ترې اخلې. کله چې هوټل ته ځې نو له هغه چا مننه وکړه، چې تاته خواړه راوړي. د ژوند په هره برخه کې له هرچا مننـدوی اوسه (دا هرڅه که څه هم ډېر کوچني او واړه ښکاري، خو دا هغه څه دي، چې ستا نړۍ بدلوي.)

هغـه نعمتونـه او برکتونـه چـې تاتـه درکـول شـوي، هغـه تـول وشـمېره، بنـه لیـدلوری. هـیڅ شـی هـم بېځایـه او بـې مـورده مـه بولـه. زه درسره شرط تـړم چـې د مننـدویی لپـاره ډېـر څـه لـرې، چـې اوس یـې وینـې د هغـو ټولـو لپـاره مننـدوی اوسـه. یـوازې د هغـو پـه اړه فکـر وکـړه، یـوازې مننـدوی و اوسـه. بیـا خپـل امنیتـي کمربنـد وتـړه او وګـوره چـې ژونـد د خنګه رنګ خپلوي.

---

**په ژوند کې چې څومره یوه شي ته ارزښت ورکوې، په هماغه کچه ارزښت پیدا کوي.**

---

## ۱۴. ګړندی عمل وکړه

ریښتینی رهبر په اصل کې د لویو او سترو نتایجو د راپیدا کولو په برخه کې شخصي- مسئولیت پذیري ده. د لویو چارو د ترسراوي په برخه کې مخکښ اوسېدل دي. اوس نو یا د جنګ په لومړی لیکه کې یې، یا د جامو په تن کولو په وخت. هدف مې دا دی:

تېره ورځ مې خوراکي توکي اخیستل، په کتار کې ولاړ وم. ګورم چې کتار هیڅ مخته نه ځي، چې ومې کتل یوه ښځه ډېره پرېشانه وه، چې د پیسو بانکي کارت یې په ماشین کې کار نه کاوه، د هغه ماشین مسئول کس هم ډېر حیران و. (نورو ته یې هېڅ هم و نه ویل چې څه شوي) خو بیا وروسته پوه شوو، چې سیستم خراب شوی و. بیا په خپل کار کې د ځینو له امله یې له خپلو پېرودونکو بښنه ونه غوښته. داسې کوم کار یې هم ونکړ، چې د کتار د حرکت لامل شي. یوازې له وېرې سره مور ته لږ موسکې شو او ډېر غوسه ناک اسویلی یې و ایست. ښکاره ده. یو ریښتنی رهبر د ستونزو او سختیو په وخت کې ځان خلکو ته ښيي نه دا چې د راحتی او امکاناتو په وخت کې.

ریښتینی رهبر هغه وخت ځرګندېږي، چې موږ په کار یا خپل ژوند کې امتحانېږو. موږ هر یو د بې عنوانه مشر۔ او رهبر په څېر یو، نو له ستونزو باید په مېړانه او قدرت راووځو. داسې یو وخت کې باید وځلېږو، چې لا پلانونه مو عملي شوي نه وي، موږ باید په ډېر سرعت عمل وکړو. بلاخره د مغازې سیستم جوړ شو، د هغې ښځې د پیسو کارت فعال شو او ما ته نوبت ورسېد، که زه بیا هم هغې مغازې ته لاړ شم او هلته بیا د ټاکنې حق ولرم، نو د داسې یو ماشین کار خوا ته به ورځم، چې هغه په خپل کار ښه پوهېږي، داسې څوک و اوسي، چې ښه په سرعت فکر وکړي، کارونه په سمه توګه ترسره کړي، نه دا چې داسې یو چاته چې پېرودونکي ورسره په تکلیف شي.

---

**ریښتینی رهبر د ستونزو پر مهال ځان را ښکاره کوي، نه د هوساینې پر مهال.**

---

## ۱۵. له عمل پرته افکار بې ارزښته دي

د کتاب د یوې برخې لپاره څومره د بحث وړ عنوان دی! ښایي همداسې وي. خو زه فکر کوم، دا رښتیا دی. ما له خپلو زیاترو استادانو اورېدلي، چې وایي نظریې بریا له ځانه سره لري او افکار د شرکتونو محرکه قوې دي. موږ به هغه څه و، چې ټوله ورځ د هغو په اړه فکر کوو، خو زما لپاره بې عمله فکر کول له یوې خالي او بې حاصله ځمکې پرته بل څه نه دي. په بل عبارت یوه نظریه که هرڅه لویه هم وي، یوازې هغه وخت ارزښت لري، چې په عمل کې ثابته شي.

زموږ نړۍ له یو شمېر متفکرو خلکو ډکه ده، چې هیڅکله هم د هغو د فکر لویي او عظمت نه عملي کېږي. د فکر په برخه کې ډېر لوی خلک دي، خو د عمل په برخه کې بیا ډېر کمزوري دي او په هغه محدودیت کې په ډېرو رنځونو اخته کېږي. یوهان فون گوته نامتو آلماني شاعر ویلي: "هر هغه څه چې ته یې ترسره کولای شې، یا د ترسره کولو ارمان یې لرې نو پیل یې کړه. مېړانه نبوغ، ځواک او جادو له ځانه سره لري." هغه خلک چې نړیوال ستندردونه لري، هغو بیا دواړه موارده ترلاسه کړي وي. هغوی هم ډېره غوره تخنیکوه او هم ډېرې غوره ستراتیژۍ لري.

نـو دې هرڅـه تـه د رسېدو لپاره ژمـن و اوسـه. خپلـې نظريـې راټـولې کـړه او ځـان د غـوره افکـارو پـه اړانـه کـې راولـه، چـې سـتا د کـار او ژونـد د ښـه کولـو قـدرت لـري. پـه ځـان کـې ډوب شـه او د خپلـو نظريـو پـه منظمولـو سره هغـه ټـولې رښـتيا کـړه، ځکـه څـو چـې تـه حرکت ونکړې هېڅ هم نه کېږي.

---

**نړۍ له داسې قدرمنو متفکرينو ډکه ده، چې هيڅکله يې خپله لويي او عظمت نه دی تجربه کړی.**

---

## ١٦. سترګې دې خلاصې کړه

ډاسې څه مې ولیدل، چې زه یې حیران کړم. نو په پلي ډول خپل د خوښې وړ ستار باکس[14] ته لاړم. یو موټر مې ولیده، یو کوچنی ماشوم یې په شا سیټ کې و، د موټر ډرایور هم نه و. پلار یې دا موټر د مغازې ترڅنګ پارک کړی و، چې مغازې ته لاړ شي او خپل سهارنۍ قهوه واخلي؛ د ماشوم پر ځای قهوې ته ارزښت ورکول!

موږ په ډېره سادګۍ د ژوندانه په ورځني بېروبار کې غرقېږو. او هغو کارونو ته د ارزښت ورکول په برخه کې پاتې راځو، چې موږ یې ترسره کوو. نامتو فیلسوف برتراند راسل لیکي: "زیاتره انسانان تر فکر کولو لا مرګ غوره بولي". دغه راز هغه وایي: "زیاتره خلک همدا کار کوي". د نړۍ په کچه انسان هغه یوازینی موجود دی، چې په ژوره توګه د خپلو افکارو او اعمالو په اړه فکر کولای شي. بیزوګان دا کار نشي- کولای، سپي او پشکې هم دا وړتیا نلري یوازې موږ انسانان دا وړتیا لرو .

---

14 Starbucks (Coffee shop)

کـه نـن ورځ آکسـیجن تـنفس کـولای شـې، نـو زمـا پـه انـد د خپلـو راتلونکـو سـاعتونو (ورځـو، میاشـتو او کلونـو) د رهـبرۍ وړتیـا هـم لـرې.

د رهـبرۍ معنـا پـه یـوه غـوره بڼـه ظاهرېـدل دي. تـه پـه دې موضـوع پـوهېږې، چـې غـوره اوسـېدل دې د بـدلون پـه حـال کـې دي او خوښـي دې د خـوا او شـا د خلکـو لـه املـه. رهـبري یـا مشرـي د پـوهې او آګـاهۍ پـه معنـا ده، د خپلـو افکـارو پوهــه، د اعمالــو پوهــه، د ماموریـت پوهــه، د لومړیتـوب پوهــه، د وړتیـاوو پوهــه، د وېـرو پوهــه، د غوښـتنو پوهــه، د دې پوهــه چـې وخـت ډېـر کـم دی، د دې پوهــه چـې ځلا تاته درکړل شوې ده، چې ته یې مشري او رهبري وکړې .

لـه همـدې املـه پـه لوڅـو سـترګو ژونـد وکـړه، شـفافیت غـوره والـی رامنځتـه کـوي. د هرڅـه پـه اړه فکـر وکـړه، د خپـل دایمـي ژونـد پـه پرتلـه لا ډېـر وځلېـږه. لـه هـر ډول نیـوکې او انتقـاد پرتـه عمـل وکـړه. پـه موټر کې د خپل ماشوم ساتنه وکړه.

---

**موږ په ډېرې آسانۍ په ځینو ورځینو چارو کې ډوبېدلای شو او د ځینو مهمو کارونه ارزښت مو له پامه غورځي.**

---

# ۱۷. د ویاړ ښې نیښانې

نن له ماشومانو سره د ښوونځي په لور تلم. په ښار کې د مني یو ډېر خوندور سهار، رنګارنګ منی، تازه هوا، ډېره خوندوره ګرمي، د کال تر ټولو غوره وخت. دا هر څه زما لپاره په زړه پورې و.

کلبي راته وایي، چې یو ملګرى یې په خپل موټر کې یو ډول پلاستیکي کیشپ (سنګ پشت) لري، هغه وایي چې دا کیشپ د هغه مور او پلار ته دې په دې موټر کې ایښې دی چې په ډېره حوصله او احتیاط ډرایوري وکړي او د ښار په واټونو کې د نورو خلکو ژوند ته هم احترام وکړي؛ ښه ده! دا موضوع ما د هغو با ارزښتمنو شیانو په یاد کې ډوبوي، چې د هغو په لیدو سره د یو شمېر ځانګړو اعمالو د ترسراوي په یاد کې غرقېږو. هغ شیان چې موږ یې په ځانګړو او مشخصو ځایونو کې راولو، څو موږ ته د دې یادونه وکړي، چې څه شی اړین دي او موږ له کومو اعتقاداتو پیروي کوو.

د رهبرۍ او مدیریت په صنفونو کې زما یو ساده تکتیک دا دی، چې د خپل کاري او شخصي- ژمنو له ډلې درې ژمنې په یو درې

اړخیز کارت ولیکئ او بیا هغه د خپل حمام په ښیښه ولګوئ، څو دغه کارت د سهار په وخت هغه لومړنی شی وي چې وینی یې. دا کوچنی تمرین ستاسې په اند د یوه بار په څېر دی. ستاسې پوهه ستاسې انتخاب ته بڼه ورکوي او ستاسې انتخابونه نتایج او پایلې جوړوي.

خارق العاده انسانان تل د کارونو د ترسراوي په برخه کې په ښه او غوره کېدو ټینګار کوي. ټول فکر یې، ټولې خبرې یې او ټولې هیلې یې همدا دي. ښه مې یاد دي یوه مقاله چې د کلیرواتر فاین فودز شرکت د بنسټګر جان رایزلي په هکله وه په هغې کې مې ولوستل: "کله چې معامله کوم، یوازې فکر کوم، چې په څه ډول یې باید ترسره کړم. هغه شپه د حمام کولو لپاره رابېداربږم او د هغې معاملې په اړه فکر کوم، ډېر زیاد تمرکز مې وکړ." هغه څوک چې لري یې، هغوی به د خپل ځانګړي تمرکز په اساس هر هغه ځای ته ورسېږي، چې غواړي یې، البته له موږ څخه په لږ توپیر. نو تاسې د غوره اوسېدو لپاره ویاړونو له کومو ښو کار اخلئ؟ کومې غوره ورځې پیدا کوئ، چې بیا خپلو چارو ته د لومړیتوب ورکولو برخې ته ورسېږئ؟ دا کار تاسې هغه وخت کوئ، چې د ورځنیو کارونو تر فشار لاندې اوسئ، چې ستاسې

تـول پـام ځانتـه اړوي؟ تاسـې د يـو غـوره او ښـه ژونـد لايـق ياسـت. د خپلـو سـمبولونو پيـدا کـول پيـل کـړئ، هغـه چـې تاسـې د هغـه څـه پـه لور لار ښوونه کوي، چې د غوښتنې هڅه يې کوی.

---

**د غوره اوسېدو لپاره کوم رمزونه پيدا کولای شئ، چې ځينو شيانو ته ارزښت پرې ورکړئ او ورته ورسېږی. په داسې حال کې چې فکر مو بل څه بوخت کړی وي.**

---

## ۱۸. په منطق پسې مه ګرځئ

د جورج برنارد شاو[۱۵] د وینا وو په برخه کې زما د خوښې وړ یوه دا ده چې: "منطقي انسان ځان له نړۍ سره عادتوي، بې منطقه انسان هڅه کوي، چې دنیا د خپلې غوښتنې په اساس برابره کړي؛ له همدې امله ټول پرمختګونه بې منطقه انسان پورې اړوند وي".

هیله ده یوه شیبه په هغه فکر وکړئ. زما په اند دا موضوع ډېر زیات ارزښت لري. هڅه وکړئ چې اغېزناک ثابت شی اوسئ او هوښیارانه عمل وکړئ، لکه څنګه چې خپل وخت په دې نړۍ کې تېروې. منم دا ډېره مهمه ده، چې د عرف او دود مطابق چلن وکړئ. دا رښتیا ده چې نامناسب او احمقانه ریسکونه ناسمې پایلې له ځانه سره لري. اوس چې دا مو وویل، نو هومره له ماتې او ناهیلی مه وېرېږه چې ارمانونه دې پوره نه کړای شي.دومره هم منطقي مه اوسئ، چې غوره بریاوې تشخیص نه کړای شي، په تېره بیا کله چې هغه تاته ځان ښیي. داسې هڅه وکړه، چې د امکان تر حده ورسېږې. په یاد ولره، چې منتقدین تل

---

[۱۵] George Bernard Shaw.

د تکړه او ارماني خلکو په لیدلورو پورې خندېدلي دي. دې ټولو ته ډېر پام مکوه او په دې پوه شه، چې د انسان د پرمختګ هره برخه د هغو کسانو د قوي تشویقونو په اساس ترسره شوې، چې هغوی ته ویل شوي و، چې د افکارو او نظریو عملي کېدل یې ناشوني دي. نړۍ لا ډېرو نظریو ورکوونکو ته اړتیا لري. داسې کسانو ته اړتیا لري، چې د هغو بې منطقه روح له عادي اوسېدو سره تل په جنګ دي. هغه کسان چې د رضایت وسوسه له ځانه لرې کوي او په دايمي ډول د چارو له ترسراوي سره مخالف دي. تاسې هم د هغو له ډلې یو تن اوسېدای شئ. له نن یې پیل کړئ. جبران خلیل جبران د پیغمبر په نامه په خپل یوه کتاب کې دا ټکی په ډېره ښه توګه بیان کړی چې وایي: "د هوسایني شهوت، د روح د شوق او اشتیاق قاتل دی ".

---

**دا مه هېروئ، چې منتقدینو تل د تکړه او ارماني خلکو په لیدلورو پورې خندېدلي دي. دې ټولو ته ډېر ارزښت مه ورکوه.**

---

## ۱۹. ټول رهبران په یو ډول نه دي

د زیاتره شرکتونو رئیسان تر وینا وروسته ماته راځي او زما د دې جملې (هرڅوک یو رهبر دی) په اړه رانه پوښتنه کوي. ما لیدلي چې زیاتره غوره او ښه شرکتونه په دې نړۍ کې یوه عمومي ځانګړنه لري. هغوی د خپلو رقیبانو په پرتله ډېر په سرعت سره داسې کارکوونکي روزي، چې هر یو یې رهبر اوسېدلای شي. د هغوی لومړنی ټینګار په همدې اصل دی او هغوی دا اصل ډېر ژر ترسره کوي.

زه دا نه وایم چې په هر شرکت کې هرڅوک باید د هغه شرکت مشري او رهبري وکړي. دا ډېره بې معنی خبره ده. هرڅوک رهبرانه چلن کولای شي، خو دا په دې معنا نده، چې هرڅوک د یو شرکت رهبري وکولای شي. د یو مثال په لړ کې به دا توپیر واضح کړم.

زما یوتو[16] خوښېږي. بونو[17] د دې ډلې اصلي آوازیوونکی دی. دویم لاري مولین د دی جاز غږوي. ډېر لوی شور به جوړ شي، که لاري داسې هڅه وکړي، چې د دې ډلې اصلي سندرغاړی شي او

---

[16] U۲

[17] Bono.

بونـو جـاز وغـږوي، نـو تاسـې يـې فكـر وكـړئ، چـې د دې ډلـې مـدير وغـواړي د يـوې شـپې لپـاره د بونـو پـه څېـر سـندرغاړی شي او صـحنې تـه لاړ شي، هغـه هـم پـه داسـې وخـت كـې چـې بونـو پـه همغـه ځـای كې وي، دا بيا سم كار نه دی.

پـه خپـل رول پـوه شـه. هرڅـوک بايـد د يـو رهـبر پـه څېـر چلـن وكـړي، اړينـه نـده چـې څـه كـوي. دا پـه دې معنـی ده، چـې هرڅـوک بايـد پـه خپلـه وظيفـه پـوه شي او هغـه كـار چـې ورسپارل شـوی د هغـه يـوه ښـه او مناسـبه پايلـه ترلاسـه كـړي. هرڅـوک دېتـه اړتيـا لـري، چـې خپـل كـار تـرسره كـړي، څـو بيـا فرهنـگ جـوړ شي. ټـول بايـد مثبـت او الهـام بښـوونكي و اوسي، ټـول بايـد د پېرودونكـو لپـاره اضـافي گامونـه پورتـه كـړي او بدلونونــه د اوضــاع د ښــه كېـدو لپــاره يــو چــانس وبــولي. هرڅـوک رهـبر اوسـېدلای او د خپـل اړونـد مسئوليت پـه برخـه كـې د غـوره اوسـېدو لپـاره اغېزنـاک ثابېتېـدلای شي، خـو ټـول يـو ډول نـه دي.

---

**هرڅوک د رهبرانو پېښې كولای شي، خو دا په دې معنا نده، چې هرڅوک د يو شركت رهبري وكولای شي.**

---

## ۲۰. زه له خپلو غلطیو او تېروتنو ډېرخه زده کوم

یوه غلطي یا تېروتنه هیڅ کومه لویه خبره نده، موږ انسانان یو. غلطۍ او تېروتنې د دې لامل کېږي، چې موږ د زده کړې او ودې لپاره مناسبې او موثرې لارې پیدا کړو. فقط دومره وکړه چې یوه تېروتنه له یوځله زیات مه تکراروه. کنه نو ښکاره هغه درس چې تاسې یې باید زده کړئ د هغه په مقابل کې تاسې مقاومت کوئ او دا بیا دا څرگندوي چې تاسې د ژوندانه له پېښو پند او درس نه اخلئ او هیڅ شي ته هم ډېر پام نه کوئ .

"د لویې لاربښوونه" په دې کتاب کې مې د هغه فرصت د له لاسه ورکولو په هکله لیکلي چې د ټورنټو په هوټل کې وکولای شم له هاروي کیتل سره وگورم. دا هغه څه و، چې کارلوس کستاندا د چانس یوه سانتي متر برخه ونوموله، دا چانس مې تر لاسه نکړ، په هغه ځای کې چې هغه ځان څرگنداوه ما هڅه وکړه هغه اصلاح کړم، ما ورسره ژمنه کړې وه، چې دا کار به کوم، په خپله ژمنه مې عمل وکړ. په ښار کې مې له خپل خپرندوی سره اړیکه لرله. ما خپل د خوښې وړ جاپاني هوټل کې سوشي خوړل. تاسې فکر وکړئ څوک زما ترڅنگ میز ته ناست و؟ هو، اریک کلپتون و.

کله چې مناسب وخت راورسېد ما ورته سلام وکړ. د زړه درزا مې ډېره شوه، البته د دې موضوع په فکر وم، چې هغه به ماته منفي ځواب راکړي. خو که ته کوښښ ونکړې، نو هیڅکله نه بریالی کېږې او نه کوم شی زده کولای شې. ما دا تشخیص کړل، چې که زه دا ګام پورته کړم، نو د دې چانس لرم، چې له هغه سره وګورم، خو که دا کار مې نه کاوه، نو په دې پوهېدم چې هیڅکله هم دا کار ترسره کېدلای نشو، نو ما هم زړه تسلی کړ او ورغلم. مور ډېر ښه بنډار او ښې خبرې درلودې. هغه ډېر جالب سړی و. داسې خبرې مو وکړې، چې زما موخې یې وتاکلې، لکه څنګه چې هر بحث او خبرې اترې همدا اغېز لري. هره ورځ ژوند ستا زده کړو ته یو چانس درلېږي. وده وکړئ، د خپل ځان د غوره اوسېدو لپاره ګام پورته کړئ، فرصتونه له لاسه مه ورکوئ، ځینې نور موقعیتونه بیا بېرته نه راګرځي، پښېماني یو انتخاب دی.

**که کوښښ و نکړې هیڅکله به څه شی زده نه کړې.**

## ۲۱. قوي پوښتنې مطرح کړئ

کله چې لـه ستونزو سره مخ کېږئ، نو په دې وخت کې د حل لارو د پیدا کولو تر ټولو لویه طریقه سمې پوښتنې کول دي. سمې پوښتنې تاسې د سمو ځوابونو په لور بیایي. پوښتنې ډېرې مهمې دي. د بېلابېلو دندو بریالي کارکوونکي په پراخ ډول ډېرې مهمې پوښتنې مطرح کوي. داسې پوښتنې چې په ډېر سرعت هغوی د مهمو برخو په لور بیایي. ستاسې په ژوند کې د دې ډول پوښتنو مطرح کول د دې لامل کېږي چې هغو موقعیتونو ته لاسرسی پیدا کړئ، چې مخکې مو هغه نه لیدل. هغه هم کله چې ټولې چارې مو په همغو دودیزو طریقو ترسره کولې؛ لکه دهغو درسونو په څېر چې تاسې یې د ماتو په نامه له یو شمېر پېښو یې زده کوئ. یا هغه وضعیتونه چې ستاسې د پرمختګ مخه نیسي.

په دې برخه کې شپږ پوښتنې مطرح شوې، چې زه یې له خپلو شاګردانو سره د رهبرۍ د تقویې په ټولګیو کې مطرح کوم. تاسې ته توصیه کوم چې تاسې هم دا پوښتنې له ځانه سره ولیکئ، د ځوابولو لپاره یې وخت پیدا کړئ او د خپلې ورځنۍ نوټ په کتابچه کې یې ولیکئ.

• هغـه کـوم کـار و، چـې مـا تـرسره کـړای وای، نـو زمـا کـاري طریقـه او ژوند به ډېر زیات بدل شوی وای؟

• تـر ۹۰ راتلونکـو ورځـو پـورې بایـد څـه پـېښ شي، چـې لـه املـه یـې داســې احســاس وکــړم، چــېش دا زمــا د کــاري او عــادي ژونــد درې غوره او خوندورې ورځې دي؟

- له چا باید مننه وکړم؟ (یو لوی لست برابر کړئ)
- څه شی باید سم کړم، دنده مې که شخصي مسایل؟
- د کـوم شي پـه تـړاو بایـد منـنـدويي و اوسـم، چـې اوســمهال یې نه کوم؟
- د تقاعدی په جشن کې، غواړم څنګه خپل همکاران را په یاد کړم؟

لکـه څنګـه چـې د نـن ورځ غـوره کـوې، تاسـې لـه خپلـې یـوې غـوره وینا سره یـوازې پرېـږدم، چـې مـارک تـواین نقـل کـړې ده: "کـه تـول لـه ځانه راضي و، هيڅ يو به قهرمان و".

په شرکتونو کې مهم کارکوونکي په پراخ ډول مهمې پوښتنې مطرح کوي، داسې پوښتنې چې په ډېر سرعت سره هغوی د یو شمېر اړینو مواردو په لور بیايي، چې شرکت د هغه مناسب او د اړتیا وړ ځای ته ورسوي.

## ۲۲. متواضع او خاکساره اوسئ

تقریباً سهار څلورنیمې بجې دي. د ورځې تر ټولو غوره وخت دی، یوه خوندوره قهوه څښم. د سیمپل پلن د خوړې نړۍ سندره اورم. د ژوند په اړه فکر کوم، د غوره زده کړې او غوره اوسېدو په اړه، داسې ډېر قوي فکر چې تاسې هم پکې راشریکوم؛ دا د نړۍ تر ټولو متواضع او خاکساره فرد اوسېدل دي.

د کاناډا لوی شتمن انسان کنت تامسون څو ورځې مخکې له دې نړۍ سترګې پټې کړې. د کاناډا یوې ملي ورځپاڼې ګلوب اند مېل د هغه په اړه "د یو میلیاردر سهارنۍ ناشتا" یوه مقاله خپره کړه، د تامسون سهارنۍ ناشتا خوړل په دې ډول توضیح شوې وه:... د هغه خوراک یوازې د اونۍ په پای کې به ډېره قوي او لږ څه قیمتي ناشتا وه، کنه هغه به خپل استوګنځي ته نږدې یو کوچني هوټل ته تلو او هلته به یې د ۱۱ ډالرو په ارزښت ناشتا خوړله، دا کار مې ډېر خوښېده.

په یوه مصاحبه کې د هوټل یو صاحب د هغه د دې خاکسارۍ او تواضع په اړه ورسره خبرې وکړې او تامسون ورته وویل: "هغه تل ساده او ښوونکی اوسېدلای دی. له کارکوونکو سره به یې شوخي

کولـه او پـه خپـل مقـام بـه یـې نـه نازېـده. خپلـه بـه یـې خپـل خـواړه راوړل او پـر میـز بـه یـې کېښـودل. د راتلـو لـه شـیبې بـه یـې مسـکی و. تېـر کـال کریسـمس کـې یـې د هوټـل لـه کـاٌرکوونکو سره یـو عکـس واخیسـت او هغـه یـې بیـا چـاپ او د هوټـل هـر یـوه کـارکوونکي تـه ورکـړ. اوس هغـوی هرڅـه لـري چـې د هغـه عکـس پـه لیـدو هغـه یـاد کـړي".

هغه څـه چـې پـه لیـدو یـې دا متواضع او خاکسـاره مشر- پـه یـاد کـړي؛ نـه هېرېـدونکې خـبرې، تواضـع، خاکسـاري او... دا ټـول د یـو ښـه او خوندور میراث پرېښودلو لپاره یو اړین او مهم اصل دی .

---

**تواضح او خاکساري له ځانه د یو ښه او خوندور میراث پرېښودلو لپاره ډېر ښه او اړین اصل دی.**

---

## ۲۳. یو غوره او مخکښ انسان و اوسه

ته یوه لاره او یو فکر یې، نو اوس چې څه غواړې هسې فکر کوه، کله چې خلک ستا نوم اوري، نو تا له کوم څه سره تړي. کله چې خلک تا ویني، یو شخصي- احساس پیدا کوي. که ستا خوښ شي یا نشي- تېر وخت دې ستا د فکر او لارې تاکونکی دی؛ له همدې امله په ډېرې مهرباني، تاسې ته دا توصیه کوم، چې ښه مدیریت یې وکړئ. په اصل کې هغه څه چې ته غواړې له هغه سره مقابله وکړې، ټول هغه گامونه او لارې دي چې تا په یو ښه او غوره انسان اوسېدو بدلوي او دا بیانوي، چې ته د ښېگڼو لاره یې او ستا فکر او لاره ښه ده، په منظور مې پوهېږئ؟ تاسې یو خاص او ځانگړی شخص یاست.

اپل، ویرجین، فت فارم او پرادا هغه برندونه دي، چې ماته ژر رایادېږي. هغه تازه، نوي او شیک دي. دوی په دې پوهېږي چې هغوی په نړۍ کې ځان ځرگندوي. هغوی ما دېته اړ باسي، چې ووایم: "څومره عجیب" تاسې هم د هغو په څېر خاص او ځانگړي اوسېدای شئ، البته د خپل ځان لپاره مو.

څه باید وکړئ، چې یو ښه مفکر او یو ښه برند شئ؟ او کله چې خلک ستا په اړه فکر کوي، نو یو شمېر الفاظ لکه نوښتګر، غوره، بریالی، تکړه او... الفاظ یې په یاد راځي. داسې کوم کار باید وکړې، چې له امله یې د استیو جابز[۱۸] له ټیم سره همکاري وکړې، یا سالوادور دالي دې د کار ځای و اوسي، یا دا چې له راسل سیمونز سره همکار شې؟ څنګه په داسې یو شخص بدلېدای شې، چې شتون او کړنې یې خلک دېته اړباسي چې ستاینه یې وکړي؟ داسې څوک باید و اوسې چې له امله یې خلک تاته راټول شي. داسې یو څوک چې نور ترې تقلید وکړي .

---

**داسې کوم کار باید وکړې، چې له امله یې د استیو جابز له ټیم سره همکاري وکړې، یا دا چې له راسل سیمونز سره همکار شې؟**

---

[۱۸] د اپل شرکت بنسټګر.

## ۲۴. سالمه سيالي وکړئ

تـول لـه تضـاده تښـتي، ځکـه يـو ډول بېخونـده احسـاس پـه مـوږ کـې راپيدا کوي، له همدې امله هغه ردوو. هيله من يو چې تضاد په يو ډول اصلاح او لمنځه لاړ شي، خو هيڅکله داسې نکېږي. بلکې د دې برعکس تل د يو زخم په څېر موږ ځوروي. (ربښتيا هم، له هر هغه څه چې تښتې، هغه به دې په لور درځي.)

زه تضـاد داسـې تعريفـوم: تضـاد د ودې او ژور شخصي- تـړاو لـه فرصـته پرتـه بـل څـه نـدي. هـر تضـاد يـو لـوی شـانس لـه ځانـه سره لـري. چـې د هغـه پـه وسـيله ښـه پـوه ترلاسـه کـړو او زمـوږ پوهـه وده وکـړي. هـر تضـاد يـو طلايـي فرصـت دی، ښـايي داسـې يـو ځـوک و اوسي چې موږ ورسره مينه لرو، يا داسې ځوک واوسي چې له موږ سره شغلي اړيکه لري، موږ له تضادونو سره ښې اړيکې جوړولای شـو. تضـاد ښـايي داسـې يـوه وسـيله وي، چـې دواړو لـورو تـه نارضايتی په يو غوره موقعيت بدل کړو .

له همدې امله له تضاده ځان وساتئ. کله چې له چا سره مخامخ خبرې کولو ته اړتيا لرئ، نو ايميل ورته مه استوئ. يو ښه رهبر اوسېدل يعنې د تعادل، مهرباني او جرأت رعايتول دي. که څه

هـم دا هرڅـه سـتونزمن ښـکاري دا پـه اصـل کـې يـوه ډالـۍ او هديـه ده. تضـادونه ومنـه. لـه ظرفيـت او امکانـاتو يـې ګټـه واخلـه. د هغـه لـه املـه خوشـحاله اوسـه. تضـاد ښـايي تاسـې تـه ښـه او غـوره خـدمتکار و اوسي .

---

**زه تضاد داسې تعريفوم: تضاد د ودې او ژور شخصي تړاو له فرصته پرته بل څه ندي.**

---

## ۲۵. د مسئولیت کچه

د یو موټر د سویچ بورډ پر سر فرض کړئ، چې یوه سکه ده د دې سکې په یوه خوا د آزادۍ کلمه لیکل شوې او په بله خوا یې د مسئولیت کلمه. زما په اند د رهبر اوسېدو او ښه ژوند لرلو لپاره باید د دې دواړو کلمو تر منځ توازن موجود وي. په بل عبارت د سکې مسئولیت خوا تمرکز باید په مرکزي برخه کې وي. ژوند په بشپړ ډول د دې دوه کلمو ترمنځ په تعادل کې دی او یو ډېر اساسي او ځانګړی مورد یې د آزادۍ او مسئولیت ترمنځ تعادل دی. هو آزاد اوسه، له هرې شیبې خوند واخله، په ډېره مینه او شوق ژوند وکړه، ښه وخت تېر کړه. په همدې شېبه کې ژوند وکړه، خو مسئولیت منونکی اوسه. خپلې موخه وټاکه. په خپلو ژمنو عمل وکړه، مهم کارونه ترسره کړه او خپلې دندې ترسره کړه .

اوسمهال ستا په ژوند کې ستا د سکې د آزادۍ خوا کرښه او تمرکز دې په کوم حالت ده؟ آیا د مسئولیت د سکې کرښه او تمرکز دې تر ډېره له آزادۍ څخه د خوند اخیستو په حال کې ده او اوس دېته وخت نلرې، چې په ژوند او کار و بار کې دې د ښه کېدو لپاره هلې ځلې وکړې؟ یا دا چې دا کرښه او تمرکز دې په

بل لوري روان دی؟ خو په ټوله کې دواړه لوري اوسېدل د انسان بې توازني ښيي. یوه غوره توصیه: د دې په اړه فکر وکړه، چې که ستا د مسئولیت کرښه او تمرکز په مرکزي برخه کې وای، نو حالات به څه ډول و. ځکه ډېره پوهه د ښو انتخابونو لاملېږي او ښه انتخابونه ښې پایلې له ځانه سره لري .

---

**ژوند توازن ته اړتیا لري او د توازن یوه اساسي برخه د آزادۍ او مسئولیت تر منځ توازن دی.**

---

## ۲۶. له پر مختګ سره مينه وکړئ

په يوه مقاله کې مې ولوستل، جان هنري نيومن وايي: چې وده او پرمختګ د ژوندانه يوازينی سند او مدرک دی. پر ما يې ډېر اغېز وکړ، څومره قوي او هوښياره جمله! ته پوهېږې چې زه د ودې او پرمختګ جملې ستايم. زه په دې باور يم، چې موږ د دې لپاره دې نړۍ ته راغلي يو، چې د خپلو کارونو او کړنو په اساس وده او پرمختګ وکړو. چې د اعمالو او د ژوند د طريقې په اساس مو وده وکړو. (په ياد ولره؛ يوازې ژوند مکوه، بلکې د ژوند لاره دې هم وټاکه) وده کول، زموږ ژوند له انرژۍ ډکوي، کله چې موږ وده کوو او خپله وړتيا تشخيصوو، نو د خپل ژوندانه په تر ټولو غوره او ښو شېبو کې يو. زموږ وده موږ ته ځواک راکوي، ان په هغه شېبو کې چې ده ناشونې وي. د ودې زياتره پړاوونه آسانه نه دي او له موږه هم هغه څه جوړوي چې هغه څه يو.

کله چې د خپل يو ښه استاد يا پير په اړه فکر کوې، نو څه دې ذهن ته راځي؟ ايا ښه او سم افکار دې ذهن ته راځي؟ ايا هغه درسونه، هغه زده کړې او هغه وده او پرمختګ ته ستايې چې د هغوی له برکته ورته رسېدلی يې؟ نو ولې ستا احساس د زياتره ناهيلې کوونکو خبرو، سختيو او واقعيتونو په اړه بايد جلا او

ځانګړی و اوسي؟ ایا دوی همغه خلک نه دي، چې تاسې یې روزلي یی او د تر ټولو غوره او ښه انسان اوسېدو لامل مو شوی؟ ایا همهغوی د دې لامل ندي شوي، چې ته دا زده کړې چې خپل دې ننني موقعیت ته ورسېږې؟ هغوی هم ستا استادان وو. هغوی د خپلې اتلولۍ په اساس ته دې شخصیتي ودې او پرمختګ ته رسولی یې. هغوی ته روزلی یې او تاته یې وده درکړې. نو په هغو وویاړه، ځکه څومره چې ته فکر کوې تر هغه زیات هغوی له تاسره مرسته کړې ده .

---

**زه د ودې او پرمختګ عبارت ستایم. زه په دې باور یم، چې موږ د ودې او پرمختګ لپاره دې نړۍ ته راغلي یو.**

---

## ۲۷.اعتبار (امتیاز) مهم نه دی

هاري ترومن په دې باور دی: "ته چې هرڅه په ژوند کې غواړې هغه ته رسېدلای شې، خو دېته باید ارزښت ورنکړې چې څوک د هغه اعتبار (امتیاز) ترلاسه کوي." یو غوره فکر! خپل کاري ماحول ته تر تلو دمخه خپل نفس دې پرېږده او ډېر غوره کارونه ترسره کړه. تاته به ډېرې ښې پېښې ترسره شي.

بشریت ستاینې، پاملرنې او سربلندۍ ته لېوال دی. موږ ټول غواړو زموږ همکاران او ټولنه مو موږ وستایي او موږ ته احترام وکړي. رهبري یوازې دا نده، چې د نورو په نظر ښه واوسو. رهبري یعنې دا چې د یو معقول علت لپاره زمن او قوي اوسېدل. لکه څنګه چې پابلو پیکاسو وايي: "ستا پنځونې او خلاقیتونه ستا تر ټولو لوی بېلارې کوونکي موارد دي." تر ټولو غوره کار ترسره کړه، خو د اعتبار په اړه یې فکر مکوه. رهبري یعنې د نورو د پرمختګ او ښه کېدو لپاره هلې ځلې کول. رهبري یعنې دېته اندېښنه نه کول، چې د کار ترخلاصېدو وروسته به څوک بریا او اعتبار ترلاسه کوي. غوره خلک تل یادېږي. دا مقوله رښتیا ده چې وايي: ښه انسانان تل پرمختللي او لوړ مقامه وي. د غوره کار تشخیصول

آسانه دي، خو د انسانانو تر منځ د یو ښه کار لپاره د خنډ رامنځته کولو حق نلرو.

**هاري ترومن په دې باور دی: "ته چې هرشی په ژوند کې غواړې هغه ته رسېدلای شې، خو دېته باید ارزښت ورنکړې چې څوک د هغه اعتبار (امتیاز) ترلاسه کوي".**

## ۲۸. د منونکي اوسېدو ښکلا

د خپل ملګري ريچارد کارلسون د کتاب "په ژوند کې بخيل او خسيس مه اوسئ" د لوستو په حال کې يم. دا ملګری مې څه موده مخکې له دې نړۍ لاړ، همدا شېبه مې د "منونکي اوسېدل، اصلي حل لاره ده" برخه خلاصه کړه، چې پر ما يې ډېر اغېز وکړ او په فکر کې يې ډوب کړم .

ريچارد ليکي: "منونکي اوسېدل بې حرکته اوسېدل ښکاري او کله چې د هرڅه منونکي اوسو، نو بيا ګورو چې دا خو بې حرکته اوسېدل نه دي. ځينې وخت موږ انسانان لا ډېر کوښښ ته اړتيا لرو، تر دې چې ګيله او شکايت وکړو، مقابله ورسره وکړو، يا له پامه يې وغورځوو، چې زياتره وخت همدا کار کوو، خو... کله چې دې پوهې ته رسېږو چې منونکي اوسېدل، آزادي له ځانه سره لري، دا هرڅه بيا زموږ د ذات يوه برخه ګرځي ".

منونکي اوسېدل يعنې د مصيبتونو او په هر موقعيت کې آرامش ته د رسېدو په برخه کې په يوه بله بڼه د برکاتو د پيدا کولو لپاره هلې ځلې کول، د دې لرغوني تکي منل هغه څه چې ته غواړې هغه نه درکوي، بلکې هغه څه ته چې اړتيا لرې هغه درکوي. موږ ټول انسانان کله کله سختې ورځې او فصلونه تجربه کوو، ځکه زه

او تاسې لويې ته د رسېدو د ښوونځي زده‌کوونکي يو. ستونزې، تضادونه او سرګردانۍ دا ټول هغه موارد دي، چې په ډېره ښکلا جوړ شوي څو موږ کمال ته ورسوي، څو ورځې غوره کېږي او فصلونه بدلېږي او هغه څه چې موجود دي د هغو په منلو سره ناسم او ترخه وختونه به دې لنډ او خوږې ورځې به دې لا ډېرې شي چې زه تل درته همدا دعا کوم .

---

**موږ ټول انسانان کله کله سختې ورځې او فصلونه تجربه کوو، ځکه زه او تاسې لويې ته د رسېدو د ښوونځي زده‌کوونکي يو.**

---

# ۲۹.افکار دې ښکلي کړه

د یو هوټل په اتاق کې په کراچي کې ناست او د دې موضوع د لیکلو په حال کې یم. یو ښه او غوره ښهر، آوازونه، فرهنګ، خلک او... دا ټول زما لپاره یو درس دی. زه په دې ځای کې له اوسېدو ډېر خوښ او منندوی یم. د یو «نومی» په نامه د جومپالاهیري کتاب لولم. ډېر ښه یې لیکلی، یو فکر یې ماته راکړی: افکار دې ښکلي کړه. ژمن اوسه، چې ټول افکار دې ښکلي کړې. ځان دېته اړ کړه چې افکار دې له ښکلاوو سره مل وي. داسې چې افکار دې ځانګړي او خارق العاده وبلل شي. دا تا په سلهاوو ځله په ښلابېلو ښو اورېدلي: د هرڅه په اړه چې فکر کوې همغه کېږي او افکار دې په سرعت رښتیا کېږي. د دې په تمه اوسه چې فوق العاده شیان به تاته ځان ښيي او حتماً به داسې کېږي. استادان، حکیمان او لارښوونکي هم همداسې وایي. ایا هیڅکله هم دېته حیران شوی نه یې چې ولې داسې وایي؟ !

زه بالاخره په دې پوه شوم، چې ولې دا فکر رښتیا دی. دا کومه عرفاني فلسفه نه ده. دا یو ساده منطق دی. داسې ده، چې هره هغه کړنه او عمل چې هره ورځ یې ترسره کوې، هغه ستا د ژوند

نتـایج زېـږوي. هـر عمـل دې لـه یـوه فکـره سرچینـه اخـلي. (پـه اصـل کـې فکـر کـول دکړنـو پـلار او نیکـه دی.) پـه هـر هغـه څـه چـې تـه تمرکـز کـوې هغـه سـتا واقعیـت ټـاکي. د انګلسـتان صـدر اعظـم بنجـامین دیـزرائیلي ډېـر ښـه ویـلي: "تـه دې لـه افکـارو پرتـه هېڅکلـه مـخ تـه نـه شـې تـلای.) یـو انسـان هیڅکلـه هـم لـه خپلـه فکـره لـوی عمـل نشي- کـولای. خپلـې هیلـې او آرمانونـه دې لـوی کـړه. بیـا پـه دې پـوه شـه، چـې لـه دې سره بـه سـتا کړنـې او رفتـار هـم اصلاح شي. کـه کـوچنی فکـر وکـړې، نـو یـو کـوچنی لوبغـاړی بـه شـې. دا اصـل د ژونـد د ټولـو چـارو د سرچینـې پـه څېـر دی. داسـې فکـر وکـړه چـې د نـړۍ ټـول خلـک ښـه خلـک دي او هـره ورځ لـه یـو خـاص او مینـه نـاک زړه سره تـه لـه ژونـده تېرېـږې او دا کړنـې پـه اصـل کـې سـتا حقیقـت زېـږوي. د دې لپـاره چـې خلـک د ښـو خلکـو لپـاره شـه کارونـه وکـړي. داسـې فکـر وکـړه چـې د تـر ټولـو غـوره ژونـد لایـق یـې او پـه دې ډاډه اوسـه چـې اعـمال دې هغـه ټـاکي لـه همـدې املـه ښـه اعـمال ښـې پایلې له ځانه سره لري .

پـه دې تمـه اوسـه چـې سـتا شـغل نړیـوال اسـتندردونه لـري، یـا پـه دې تمـه اوسـه چـې ټولنـه دې غـوره و اوسي. هغـه ښـکلی فکـر بـه دې ژونـد او شـغل تـه ښـکلا ورکـړي او دا اسـتثنایي چلـن بـه یـو شـمېر د

پام ورې نتایج لـه ځانـه سره ولـري. هیلـه مـن یـم، چـې دا ټکـی مـې پـه واضـح ډول توضـیح کـړی وي، ځکـه زه پـه دې بـاور یـم، چـې دا ډېـر مهـم دی او پـه ډېـره سـادګي تـرې تېرېـدلای شـو. سـتا افکـار سـتا واقعیـت او سـتا دنیـا جـوړوي. پـه هغـه څـه چـې تـه تمرکـز کـوې هغـه وده کوي او هغه څه چې تـه یـې تـل پـه فکـر کـې یـې نـو برخلیـک دې ټاکي .

---

**د افکارو ښکلي کولو ته ژمن اوسه.**

---

## ۳۰. د خلکو منفي خبرو ته غوږ مه ږده

دا مهمه نده، چې خلک ستا په اړه څه فکر کوي، موږ خپله زياته برخه انرژي د خلکو په افکارو او نظريو مصرفوو، ځکه موږ غواړو چې خلک له موږ سره مينه وکړي، دېته اړتيا لرو چې ټول خوشحاله کړو؛ خو يو ښه او بې ضرروره رهبر اوسېدل داسې کېږي چې د ځان مکمل ليدو له دايرې ځان وباسو موږ مکمل نه يو. ځانته احترام وکړه، تل چې له خپلو ارزښتونو سره ژوند کوې، که تل معتبر او د خپل کار په لټه کې اوسې او خپلې هيلې تعقيب کړې، نو ولې بايد دېته په اندېښنه کې شې چې نور خلک ستا په اړه څه فکر او احساس او خبرې لري؟ برياليتوب داسې کومه سيالۍ نده، چې څوک ډېر مشهوره دی، د هرې ورزې په پای کې مهمه دا ده چې ته و ارزوې چې آيا صادق اوسېدلای يې کنه .

---

**برياليتوب داسې کومه سيالۍ نه ده، چې څوک ډېر مشهور دی.**

---

## ۳۱. آيا د ټوکو او شوخۍ ظرفيت لرې؟

بيانکا، زما يوولس کلنه لور يوه تکړه، هوښياره او پوه نجلۍ ده. هغه غواړي په راتلونکي کې د ګرين ډې د موسيقۍ غړوونکو په ډله کې جاز غږوونکې شي. خپل سپي "مکس" سره يې ډېره مينه لري او کله چې خاندي نو ټوله نړۍ د هغې د خندا له آواز سره خاندي.

د يوې غوره مکالمې په حالت کې ياستو، (زه خپل ډېر وخت له خپلو ماشومانو سره په خبرو کولو تېروم، کله چې له هغوی سره اوسم نو خپل ګرځنده ټليفون بندوم.) بيانکا راته وايي، چې د هغې ټولګيوال وايي، چې هغه يوه ډېره جالبه نجلۍ ده. هغوی د دې په خندولو مئين دي. هغوی پوهېږي چې دا يوه قوي او لويه ارواح لري او داسې يوه جمله وايي چې ما خندوي: "پلاره، زما ټول ملګري ماته وايي چې زه ډېره شوخه يم ".

اجازه راکړئ دا پوښتنې له تاسې هم وپوښتم: څومره شوخ ياست؟ په وروستۍ ځل هغه څوک و، چې ډېر زيات يې وخندولئ؟ څومره وخت بعد يو ځل ژوند ته خاندې؟ حتی د ژوند

سختو او پېچلو مسایلو ته، (ژوند کله کله ډېر ګډوډ وي، همداسې نه ده؟ په ګډوډۍ مئین اوسه، ته اصلاً په همغه ځای کې وده کوې.) غوره انسانان هیڅ شی هم ډېر ځانته نه سختوي. (که ډېر جدي واوسې، هیڅوک هم تا بیا ډېر جدي نه بولي.) د کارونو د ترسراوي لپاره تر ټولو غوره لار هڅې او کوښښونه دي او بیا هغه خوشې کوي او دا اجازه ورکوي، چې ژوند خپله لار تعقیب کړي، ژوند پوه دی.

له همدې امله شوخ و اوسئ، آرامه اوسئ. خو هڅه وکړئ چې غوره او ښه انسان و اوسې، خو هغه له شوخ طبیعتۍ او ښادۍ سره مل کړې. په خپل ژوند کې ښکېل شه، خو ډېر قوي نه. هره عقب نشیني یا شاتګ یوه لویه بریا ده. (تقریباً ۴۳ کاله وخت یې ونیوه، چې دې نتیجې ته ورسیدم.) ژوند هیڅکله هم دا نغواړي چې مصیبت و اوسي، ژوند به ډېر خوندور و اوسي.

**په وروستۍ ځل هغه څوک و، چې ډېر زیات یې وخندولئ؟**

## ۳۲. د قدرت تر لاسه کولو ځرنګوالی

دا ساده حقیقت ما له ډېرو مخکښو او بریالو رهبرانو اورېدلی، چې له هغوی سره به مې د ویاند او د رهبري پلاوي د مشاوریت په برخه کې کار کاوه؛ په ریښتیني معنا د قدرت د ترلاسي یوازینی لار خلکو ته د قدرت ورکول دي. که هرڅه ډېر په خپل تیم تکیه وکړې، څومره ډېر پرې باور وکړې او باور پرې ولرې، که هرڅه ډېر یې د ودې لپاره وخت ورکړې، د پرمختګ لپاره یې که هرڅه ډېره سرمایه ګذاري وکړې؛ نو همدومره ډېر به د ځان په هکله د هغوی ژمنتیا، لېوالتیا او وفاداري ډېره کړې .

قدرت په دې معنا نده، چې خلک خپل ځانته تابعداره کړې او هغوی د کارونو ترسراوي ته اړ کړې. یوازې له دې امله چې په ویزیټ کارت دې مقام او موقف چاپ شوی دی. ریښتینی قدرت هغه وخت ترلاسه کېږي، چې ته خپل شور او لېوالتیا وښیې خپل کسان د یو لامل په اساس توجیه کړې، چې ستا د استراتېژۍ په اساس پرمختګ وکړي او مخ پر وړاندې لاړ شي، هغوی ته احترام وکړې، چې د هغوی په څېر بل نه وي، هغوی ته د دې اجازه ورکړې چې وده وکړي او لا ډېر وځلېږي او د هر ډول عنوان او

مقام پرته رهبري وکړي. د هغوی لپاره په ځان سختی ومنه چې هغوی تاته ځان قربان کړي. دا ټولې ساده خبرې دي، خو لکه څنګه چې تر دې دمخه مې وویل ساده انسان یم. د ولزفارګو بانک مسئول مدیر ریچارد کوواسویچ په دې باور دی چې: "پینځه غوره لوبغاړي بریالي کېږي. نه دا چې له پینځه نفرو تر ټولو غوره لوبغاړی ".

---

**په ریښتیني ډول د قدرت د ترلاسه کولو یوازینۍ لار، خلکو ته واک ورکول دي.**

---

## ۳۳. عادتونه د ژبو په سر دي

ښـايي عادتونـه هـومره هـم د ژبـو پـه سر نـه وي او تـر ټولـو غـوره و اوسي. هغـه لامـل چـې يـو غـوره شـی لـه نـورو جـلا کـوي هغـه عـادت دی. څـو ښـه عادتونـه ښـايي ستاسـې پـه ژونـد او دنـده کـې ډېـر زيـات بدلونونـه رامنځتـه کـړي. دا عادتونـه د منځنـي حـد اوسـېدل او غـوره اوسـېدل ټـاکي. نـو پـه ډېـر دقـت سره يـې وټـاکئ. د موضـوع د بيـان لپـاره يـو مثـال ضرور دی: يـو ښـه عـادت لکـه د بلـوط د يـوې ښـې او کلکـې ونـې پـه څېـر دی. لـه يـو کـوچني تخـم څخـه راپيلېـږي، يـوه شېبه کـې هغـه کـرې، کـه هـره ورځ يـې سـاتنه ونشي- او رسـيدگي ورتـه ونکـړو نـو پـه سرعـت سره يـو دمـي لـه منځـه ځـي، خـو کـه هـره ورځ لـږ لږ يـې سـاتنه وکـړو، نـو هغـه ونـه وده کـوي. تـر دې چـې بلاخـره داسـې ورځ هـم رارسـېږي، چـې هـومره غټېـږي چـې مـاتول يـې تقريبـاً ناشوني کېږي.

سـتا عادتونــه د دې ځرګنــدوونکي دي، چــې تــه دې د لــويې او عظمـت پولـو تـه نـږدې يـې. هغـه عادتونـه چـې پـه بريـاليو خلکـو کـې مـې لـه لـوړو اسـتندردونو سره پيـدا کـړي لانـدني مـوارد لـه ځانـه سره لري :

- ټول کارونه او اعمال دې له ډېرې ښېګنې او کمال سره همغږي کړه.
- له خلکو سره اړیکو ته لومړیتوب ورکړه.
- سختۍ او مصیبتونه ټول د خپل ځان او خپلې دندې د غوره کېدو لامل وبله.
- وختي پاڅېږه.
- ږ ژمنې او ډېر عمل کوه، لږ تعریف وکړه او ډېرې پیسې وګټه، خلکو ته ډېر وخت ورکړه او په دې پوه شه چې ته بریالی یې.
- یو شوقي او مینه ناک زده‌کوونکی اوسه، هره ورځ مطالعه کوه، د پوه او مطرح عالمانو خبرو ته غوږ نیسه او په علمي سمینارونو کې برخه اخله.
- د هرې ورځې شپېته لومړني ساعتونه دې په موخو ټاکلو، پلان جوړولو یا ورزش کولو تېرې کړه، چې انرژي او تازه ګي له لاسه ورنکړې .
- په خپلو اړوندو کارونو کې ښه اوسېدل، د پام وړ اوسېدل او په ټوله کې انسان اوسېدل په خپل ژوند کې تعادل ته ورسوه .
- څو ښه عادتونه انتخاب کړه، چې په آرامۍ سره یې پیل کړې او د دې ښو عادتونو تخمونه وکرې .

---

**هغه لامل چې غوره شی له نورو جلا کوي، هغه بل څه نه، بلکې عادت دی.**

---

## ۳۴. په غوره شېبو پسې وګرځه

نن مې يوه غوره شېبه تجربه کړه. په زرګونو انسانان راته ولاړ و، چې ما تشويق کړي. داسې کوم ناشر هم نه و، چې زنګ راته وکړي. د "فورچون پنځه سوله" له نشريې څخه ماته چا زنګ ونکړ، چې د هغوی په مخ کې د وينا لپاره ما وبلي. تر دې هرڅه يو بل ډېر مهم څه و، چې نن مې په ژوند کې راپېښ شول. يو ډېر ساده او معمولي شی و.

خنګه چې د خپل دفتر په پارکينګ کې وم او له خپل موټره پياده شوم، نو يو ډول خوږ ورم مې تر پوزې شو. ډېره ښکلا وه، ډېر خوږ او خوندور و. خپل خوا او شا مې وکتل بيا مې وليدل چې د يوې ښکلې او ګلداره ونې لاندې درېدلی يم. پسرلی رارسېدلی و او دې ونې هم خپله جادو ښودلې وه. په همغه ځای ودرېدم، خپلې سترګې مې پټې کړې، هغه خوږ ورم ډېر اغېز راباندې وکړ، عجيبه شېبه وه! له ژوندي پاتې کېدو مې منندوی وم. هو ډاډه يم داسې ستونزې لرم چې هغو سره بايد مبارزه کوم. (څوک چې په ژوند کې ستونزې نلري، هغوی تول مړه دي.) بلې حتماً ژوند غوره کولای شو، خو خوشحالي يعنې يو مناسب او غوره ليدلوري ته

رسېدل. مـوږ تـول پـه خپـل ژونـد کـې ځينـې نعمتونـه او برکـات لـرو؛ لکه د هغو کسانو په څېر چې لـه مـوږ سره مينـه لـري يـا داسـې کومـه دنـده لـرو چـې زمـوږ ورځـې تـه معنـا وربښـي. لکـه سـالم ماشـومان او سـاده ډالـۍ لکـه د ميـز د سر خـوراک او دوه سـترګې چـې د هغـو پـه برکت هرڅه ليدلای شو، لکه د پارک همغه غوره شېبه او …

ژونـد ډېـر لنـډ دی، هـو د غـوره انسـان کېـدو لپـاره او پـه خپلـه دنـده کـې د بريـالي کېـدو او دغـه راز بريـا تـه د رسـېدو لپـاره بايـد تمرکـز وکـړو هـر ډول تمرکـز چـې زمـوږ پـه زړه او زمـوږ پـه خوښـه وي. دې هرڅـه سر ښـه موافـق يـم، خـو د ژوندانـه لـه دې سـفره خونـد اخيسـتل هـم بايـد پـه همغـه انـدازه مهـم او اړيـن وبولـو. خنديـدل، خونـد اخيسـتل، مـاجراجويي کـول، د ښـو شـېبو لـه لاسـه نـه ورکـول او… دا تـول زيـاتره يـې وړيـا دي او تـر ډېـره زمـوږ د سـترګو پـه وړانـدې دي. فقط دومره که وکړو چې دې هرڅه ته وخت پرېږدو .

---

**هو، ژوند ښه او غوره کولای شو، خو خوشحالي يعنې تناسب او يو ښه ليدلوري ته رسېدل.**

---

## ۳۵. په ستاینه کې تناقص

یوه ورځ مې کلبي ښوونځي ته ورلو، داسې یو فکر مې ذهن ته راغی، چې غواړم تاسې هم په هغه کې شریک کړم. مور د یو طنزي سریال (ټول له ریموند سره مینه لري) په اړه خبرې کولې. دقیقاً مور د ریموند د ښځې یعنې دبورا او د هغه د مور یعنې ماري ترمنځ د اختلافاتو په اړه خبرې کولې. کلبي وویل د هغوی دواړو یو بل نه خوښېږي. ماري ته د دبورا د لاس پخلی خوند نه ور کوي. کلبي ته مې وویل چې د دې موضوع په اړه ژور فکر وکړي او اصلي مسئله پیدا کړي. وروسته تر دې چې د دې هرڅه په اړه مې لږ خبرې وکړې، یو ځل مور دواړه یوې اصلي مطلب ته متوجه شو: دا چې د ماري دبورا نه خوښېدله، اصلي لامل یې دا و، چې د دبورا او د ماري د زوی ریموند ترمنځ مینه هغې ته یو ګوابښ ښکارېده، هغې د نا امنۍ احساس کاوه، هغې داسې فکر کاوه چې خپل زوی به له لاسه ورکړي. نو د دبورا په برخه کې ډېره سختګیره وه او هیڅکله به یې د هغې ستاینه او هغې سره ښه چلن نه کاوه، هیڅکله .

زه په کور او کار ځای کې د منننې کولو په فکر کې شوم، البته په یوې ځانګړې برخه کې ستاینه کول زما لپاره د لمر په څېر و: که هرڅه ډېره ستاینه وکړې، هومره ډېر د خوا او شا چارې دې ډېر تا په لور راځي. سره له دې زیاتره خلک د ستاینې لپاره تنبلي او خساست کوي، حال دا چې ستاینه وړیا او مجاني هم ده. د ګالاپ د شرکت د آمارو په اساس لومړنی هغه دلیل چې د یو شرکت کارکوونکي هغه ځای پرېږدي دا ده، چې مدیران یې هغوی نه ستايي. په اصل کې زیاتره مدیران په ټولیز ډول ستاینې او تحسین کولو ته هیڅ پام نه کوي، ځکه هغوی داسې فکر کوي، چې ستایل او تحسین کول هغوی سپک او بې ارزښته کوي. تر کومه ځایه چې پوهېږم حقیقت دا دی: هغه کسان چې ستا په خوا او شا کې دي د وړتیا په اساس د هغو په ستایلو او تحسینولو سره ستا موقف لوړېږي، تاته قوت درکوي او په دې کار یو اتل ښکارې. په خپل کاري ماحول کې یو لوی او غوره انسان ښکارې، البته د ټولو تر سترګو. نو هغه څه چې ستا د ټیم غړي یې تړي دي، هغه تړې مه سپموه. موږ ټول غواړو چې د خاص اوسېدو احساس ولرو. زه او ته دا غواړو، دبورا هم همدا غواړي ...

**هغه کسان چې ستا په شاوخوا کې دي د ورتیا په اساس د هغو په ستایلو او تحسینولو سره ستا موقف لوړېږي، تاته قوت درکوي او په دې کار یو اتل ښکارئ.**

## ۳۶. چانس د قانون په مقابل کې

دا رښتیا دي چې وايي: که هرڅه ډېر کار وکړې، هومره به ډېر خوش چانسه وې. ښايي حیران شئ! ایا یو خارق العاده ژوند د چانس نتیجه ده یا یوه ډله طبیعي قوانین شته، چې کله ځان له هغو سره برابروو، نو ښه نتایج ترلاسه کوو؟ ښه نو دا زما ځواب دی. هغه خلک چې ښه کار کوي د هغو لپاره، ښه واقعات پېښېږي. ښه کارونه وکړه چې ښو نتایجو او ښو پایلو سره مخ شې .

په دې وروستیو کې ما د کرنې په هکله ډېر فکر کړی. نه زه په دې هڅه کې نه یم، چې کار، د مدیریت زده‌کړې او خپل شخصي-ژوند پرېږدم او وخت مې په کرنې تېر کړم. (که څه هم دا ډېر غوره ژوند دی.) خو یوازې په دې هکله فکر وکړه. د کرنیز چاپېریال قوانین او د طبیعت قوانین دا ټول همغه قوانین دي، چې زموږ ژوند او کار کنټرولوي. چې څه کرې هغه به ریبې. خپل کښت ته پام وکړه، ساتنه یې وکړه، ښه یې ورووزه. ایا رښتیا هم داسې فکر کوې، چې یو د یو ښه محصول له ترلاسي به بې برخې شې؟ ناشوني ده .

هو، حتماً، کله کله زمونږ چانس خراب وي، دا ډېر ښه ده. زما لپاره یو ښه ژوند د طبیعت له قوانینو سره ژوند کول دي؛ داسې شیان لکه پېرودونکو او خوا او شا خلکو ته ارزښت ورکول. له هرچا سره چې مخ کېږي، مناسب چلن ورسره لرله، چې هغوی داسې احساس وکړي، چې ډېر مهم او اړین خلک دي. ډېر زیات صادق او ډېر مینه ناک اوسه. د دې ټولو کارونو ترسره کول زده کړه او تل دوام ورکړه، هرڅه به ډېر ښه وي او په یاد ولره، که هرڅه ډېر تخم وکرې هومره ډېر حاصل به اخلې .

---

**څوک چې ښه کارونه کوي، هغوی سره ښه کېږي. ښه کارونه کوه، چې ښې پایلې او ښه نتایج ترلاسه کړې.**

---

## ۳۷. وړې ستونزې لويې هغه زېږوي

زياتره اداري د يوې لويې ضربې له امله نه خرابېږي، زياتره اړيکې د يو اوږد بحث له امله نه خلاصېږي. د زياترو خلکو ژوند له يوې غمناکې پېښې سره نه خرابېږي. زه تاسې ته دا ښيیم، چې دوامداره ماتې د ځينو وړو ورځنيو کارونو د پام کې نه نيولو له امله دي، چې يو په بل را ذخيره شوي او بلاخره لويېږي او په انفجار يا خرابېدو ختمېږي.

لکه د اوښ ملا درياد کړئ. د اغزيو وړې وړې ټوټې د دې بېوزله حيوان په ملا راټولېږي راټولېږي، او دا هر يو اغزی په يوازې ځان کوم وزن نه لري او يوازې د لږ رنځ لاملېږي. کله چې د اغزو دا ټوټې د اوښ په ملا ډېرېږي نو د وخت په تېرېدو بلاخره دا حالت تر هغه ځايه رسېږي، چې بيا يو وخت د اوښ په ملا د يوه اغزي په اېښودلو سره هم د اوښ بار هومره قوي او ډېرېږي چې د دې حيوان ملا د ماتېدو تر حالته رسېږي.

زه دا سندروم يا د اوښ د ملا ناروغي بولم. د وړو وړو خبرو او کارونو په پام کې نه نيول په تدريج سره بې شکه چې د ژوند او

شرکت لپاره ډېر زيات گواښونه له ځانه سره لري. ښه خلک هغه دي، چې د وړو وړو مواردو په فکر کې هم دي، هغوی هغه څه ته هم پام کوي، چې زموږ په نظر ډېر واړه ښکاري. هغوی د پروژو او وړو کارونو د تراسراوي په برخه کې او دغه راز هغوی ته د ورکړل شويو مسئوليتونو د ترسراوي په برخه کې ډېر بريالي دي، چې دا هرڅه يې د لويو کارونو د ترسراوي په برخه کې د بريا لاملېږي. هغوی دا درکوي، چې تلپاتې برياوې، تکاملي بهير تېروي. نه دا چې په انقلابي ډول، تاسې هم داسې کولای شئ .

---

**اوړدې او تلپاتې ماتې د يو شمېر وړو کارونو د له پامه غورځوولو له امله وي، چې يو په بل راټول شوي او بلاخره يې په انفجار او وړو کېدو ختمېږي.**

---

## ۳۸. یو سلنه اضافي انرژي مو وسوځوئ

کله چې له روم څخه په تیاره کې د خپل ښار په لور راتلم، د جې کیو انگلیسي- مجله مې لوسته. (روم ډېر ښکلی ځای دی، لکه چې په دې وختو کې یو ازي ملگري ماته وویل، چې روم کې که په هر لوري لاړ شې نو د هغه ښار د تاریخ یوه پاڼه کشفوې.) تر ټولو لویه نظریه او فکر چې د دې مجلې له لوستو به یې تاسې ترلاسه کوئ، هغه زما د ملگري کریس کارمایکل له ذهنه سرچینه اخلي. هغه د فرانسې د لانس ارمسترانگ د بایسکل چلولو د سیالۍ کپتان او اووه ځله گټونکی دی. هغه وایي: "هغه وروستی یو سلنه انرژي چې زیاتره خلک یې ذخیره کوي، هغه هماغه یو سلنه انرژي ده چې اتلان یې د سوزولو جرأت لري." عجیبه ښکلی فکر! هیله من یم چې هیڅکله یې هم هېر نکړو. د ښه اوسېدو لپاره د خپل بدن د انرژۍ له هرې ذرې گټه واخله او خپلې وړتیاوې راویښې او ځرگندې کړه. د وجود داخلي اور دې تازه کړه، تر دې چې بلاخره ته داسې وویلای شې چې ما خپله ټوله هڅه کړې او تر ټولو غوره اوسېدلی یم. دا کار به ډېر ښه وي. همداسې نه ده؟ په یاد ولره، چې لوی او ښه موقفونه په هغې

شـېبه کــې ځــان ثرګنــدوي، چــې معمــولي خلکــو ځــان غلــی کــړی وي.

**هغه وروستی یو سلنه انرژي چې زیاتره خلک یې ذخیره کوي، هغه هماغه یو سلنه ده چې اتلان یې د سوزولو جرأت لري.**

## ۳۹. د خلکو ښېګڼې جبران کړئ

زموږ انسانانو طبیعت داسې دی، چې غواړو هغو کسانو سره مرسته وکړو، چې له موږ سره یې مرسته کړې ده. موږ هر یو د دې کار لپاره ډېر تږي یو، چې هر هغه کار چې له موږ سره شوی هغه جبران کړو؛ له همدې امله زه په دې باور یم، هر هغه څه چې زه یې ورکوم بېرته یې اخلم. مثلاً: همدا اوس شل دقیقې له اصلي لارې منحرف شوم، چې بنزین واخلم. ولې باید دا کار وکړم، کله چې د ترسره کېدونکو کارونو لپاره یو اوږد لست او یوه ستړې ورځ لرم؟ ولې باید دا سخت کار ترسره کړم، کله چې راحت طلبي دا ایجابوي چې د بنزین ځای ته لاړ شم، چې زما له دفتره دوه دقیقې ډېره فاصله نلري؟ ځواب: دا کار مې وکړ، چې د یو چا لطف ته ارزښت ورکړم، هغه چا ته چې له ماسره یې ښېګڼه وکړه؛ یو ښه انسان ته .

څو اونۍ مخکې، وروسته له دې چې ما خپل ماشومان ښوونځي ته یوړل، نو دېته متوجه شوم، چې د موټر یو ټایر مې پنچر دی. د بنزین درې مرکزونو ته لاړم، یوازې یو یې بلاخره په دې وتوانېد چې په سرعت زما د موټر ټایر جوړ کړي. یو بوډا ډېر عمر لرونکی

سړی، چې د کار جامې یې په تن وې او د تونې نوم یې په سینه حک شوی و. هغه ووېل چې له ماسره په مرستې کولو خوښېږي. کله چې منتظر وم نو یو ګیلاس قهوه یې راکړه. حال دا چې زما د موټر ټایر یې جوړاوه، په ورته وخت کې زه یې هم په دې بوخت کړم. هغه په ډېره مینه خپل کار ترسره کاوه. هغه یو بې عنوانه رهبر و. خلک د هغه په څېر ماته الهام رابښي او ما د ښه اوسېدو په لور لېږي .

د همدې لپاره زه فرصت پسې وم، چې د هغه ښېګڼه جبران کړم او له هغه مننه وکړم. له نن ورځې وروسته د خپل موټر د هر کار لپاره هغه ته ورځم او خپل ملګري هم هغه ته معرفي کوم او هغوی هم خپل نور ملګري ورته معرفي او ورلېږي. ځکه تونې د بریالي کېدو مستحق دی او زه غواړم په متقابل ډول د هغه ښېګڼه جبران کړم .

**زموږ انسانانو طبیعت داسې دی، چې غواړو هغو کسانو سره مرسته وکړو، چې له موږ سره یې مرسته کړې ده. موږ هر یو د دې کار لپاره ډېر تږي یو، چې هر هغه کار چې له موږ سره شوی هغه جبران کړو.**

## ۴۰. موخه مو بیان کړئ

ایا تر اوسه مو دېته پام کړی، هغه خلک چې موږ د نورو په پرتله هغوی سره ډېره مینه لرو، هغه دي چې موږ د ټولو په پرتله د هغوی شتون ته لږ متوجه یو، او ډېر خیال یې نه ساتو؟ عجیبه ده! داسې نه ده؟ دا ډېره آسانه ده، چې لږ وخت له کورنۍ سره تېر کړو، ځکه هغوی تل ستا لپاره دي. هغه چا سره چې موږ مینه لرو هغوی ته د خپلې مینې اظهار موږ تل ځنډوو، داسې ښکاري چې دې کار ته عجله نشته. دا ډېره آسانه ده، هغه اړیکې چې موږ یې له کورنۍ سره لرو، هغه لږ لږ له لاسه ورکړو، ځکه موږ داسې فکر کوو، چې یو شمېر نورو مهمو چارو ته باید ارزښت ورکړو؛ خو څه شی ل کورنۍ هم اړین کېدلای شي؟ یوازې خو بریالي اوسېدل څومره خوند لري؟ د کورنیو عکسونو یو البوم زما لپاره د یو لوی بانکي حساب په پرتله ډېر ارزښت لري؛ رښتیا وایم.

نو ټلیفون دې راواخله مور او پلار ته دې ووایه چې هغوی سره مینه لرې. مخکې له دې چې خپل کاري ماحول ته لاړ شې. د ژوند ملګرې / ملګری دې ښکل کړه، ماشومان دې په غېږه کې واخله او هغوی ته ووایه چې له هغوی سره مینه لرې. په دې توګه

ستا ماشومان ډېر ځوان پاتې کېږي کله چې فرصتونه له لاسه ورکړل شي، بیا د تل لپاره له لاسه ورکړل شوي وي.

---

**هغه څوک چې موږ ډېره زیاته مینه ورسره لرو، دوی هغه څوک دي چې موږ تر نورو زیات د هغوی شتون هیر کړی دی.**

---

## ۴۱. ریچارد برنسون او ډېره زیاته خوشبیني

همدا اوس ما د فورچون یوه نشریه ولوسته او مکمله مې کړه، یوه مقاله پکې وه، چې د تکنولوژۍ یو کنفرانس چې د نکر په جزیره کې جوړ شوی و، د هغه ستاینه یې کوله. دا پټنځای د کاریب په اقیانوس کې واقع ده، چې ریچارد برنسون هغه ۲۵ کاله دمخه واخیست. دا مقاله د کمپیوټر په علم کې نابغه او تکړه ځوانان او د هغوی راتلونکي لیډلوري ارزولو، د هغو د خوندونو په اړه ویل شوي و، چې څنګه یې کیښتۍ چلولې. د هغو د یو بل سره اوسېدو او بنډارونو په اړه، د قوي مکالماتو په اړه یې خبرې کولې. (موږ هر یو د اونۍ په لړ کې یو شمېر مهمو او قوي خبرو اترو ته اړتیا لرو، چې موږ ته انرژي او ځواک راوبښي، موږ راپورته کړي او زموږ د ژوندي کېدو لامل شي.) دا د بحث اړوند موضوع برنسون ته ورسېده، چې د ویرجین د نړیوال شرکت بنسټګر دی. د مقالې لیکونکی دیوید کیرک پاتریک دی، چې هغه لیکلي و: برنسون له هرچا سره د هرڅه په اړه خبرې وکړې، له خوراکه نیولې تر ورزش او سپورټه؛ خو تر ټولو هغه زیات شی، چې په دې برخه کې هغه یې تر اغېز لاندې راوست هغه ډېرې خنداوې وې داسې ښکارېده

چې برنسون تل ژمن دی. د یو خبري شرکت مدیر مسئول له هغه سره موافقه وکړه او ویې ویل: دا همغه دي، چې زه د دې مهمو خلکو په اړه ما هغه ته پام کړی دی. هغوی تل په ټولنه کې تر ټولو خوشبینه خلک د، څومره جالب !

خو هغه برخه ي مور ورته رسېږو دا ده، چې سطحي خوشبیني بېځایه او سترې کوونکې نه وي. خیر په اصل کې د هر هغه چا لپاره وسیله ده، چې غواړي ریښتیني او اصلي غوره اوسېدو ته ورسېږي؛ یو بشپړ ژوند هره ورځ د هغو لپاره چې تکره دي، فکر کوي او موخې ټاکي د هغو لپاره نوې ستونزې رامنځته کوي. کله چې غواړې لویې او عظمت ته ورسېږې دا د معادلې یوه برخه ده، د هرې ډلې له تر ټولو خوشبینه وګړي سره اوسېدل د دې لاملېږي چې تاسې داسې یو ځای ته ورسېږئ چې تل هغه ځای ته د رسېدو په هیله وئ .

---

**د هرې ډلې له تر ټولو خوشبینه وګړي سره اوسېدل د دې لاملېږي چې تاسې داسې یو ځای ته ورسېږئ چې تل هغه ځای ته د رسېدو په هیله وئ.**

---

## ۴۲. پام دې وي چې د يو قرباني په څېر خبرې ونکړې

زما د يو بل کتاب (د لويې لاربښود) يوې برخې ته گرځو، چې تاسې مې په هغه کې راگډ کړئ او د خبرو د څواک په اړه يې خبرې کولې او همدا خبرې ستاسې احساس جوړوي. د هغو اغېزمنتاوې ستاسې په ورځنيو کارونو کې منعکسېږي، هغوی کولای شي، تاسې يا له لوړې څوکې يا يوې درې ته رهنمايي کړي. له کلماتو ډېره سمه گټه واخله چې غوره او ښه ژوند ته ورسېږې .

تېره ورځ د منهټن په ستارباکس هوټل کې وم. يو سړی چې زما ترڅنګ په کتار کې ولاړ و، هغه د يوې ځانګړې قهوې فرمايش ورکړ. آغلې باريستا وويل، چې هغه ډول قهوه يې خلاصه کړې ده. ماته داسې ښکارېده چې هغه سړی زخمي شوی. داسې ښکارېده چې کوم غشی يې په زړه کې خوړلی دی. د هغه ځواب د هغو کسانو په څېر و، لکه چې د قرباني اوسېدو احساس لري او بيا يې وويل: "څنګه ماسره داسې کولای شې؟" لږ شېبه په تمه شوم، چې هغه لږ آرام شي او وخاندي، خو هيڅ داسې ونشو. دا مهمه نده چې ژوند موږ ته څه راکوي، موږ مسئول ياستو چې

ځنګه یې ځواب ورکړو. رښتیا وایم. موږ د خپلو غبرګونونو صاحبان یاستو، موږ د تاکنې واک لرو، چې په هر موقعیت کې څه ډول عمل وکړو، په سختۍ یا نېکۍ ځواب ویلای شو. تل داسې زرګونه برخې شته چې زموږ په خبرو پیلېږي. هغه په سمه توګه انتخاب کړئ، مشران او رهبران همداسې دي.

---

**دا مهمه نده چې ژوند موږ ته څه راکوي، موږ مسئول یو چې ځنګه یې ځواب ورکړو.**

---

## ۴۳. زه هم د کشش په حال کې یم

پوهېږم چې تاسې ته دا جرأت درکوم چې د نوښتونو لپاره هلې ځلې وکړئ، چې پوهې او ودې ته ورسېږئ او يو لوړ مقام ترلاسه کړئ. هغه کارونه چې تاسې يې ترسره کوئ او په هغه ژوند کې چې مشري او رهبري يې تاسې ته در کول شوي ده، په هغه کې کولای شئ، د خپلو وېرو په لښکر برلاسي شئ. (په ياد مو بايد وي، چې زياتره هغه شيان چې موږ ترې وېرېږو، هغه هيڅ نه رامنځته کېږي.) خپلې سختۍ او ناراحتۍ ټولې په غبږ کې ونيسئ. زه خپله هم خپل ټول هڅه او زيار باسم چې تر ټولو ښه او غوره و اوسم. د بېلګې په توګه :

تېره اونۍ دوه ورځې د سندرو د ثبتولو په سټډيو کې وم. ډېر زيات وخت و، چې ما دا ارمان درلود چې يوه سندره ووايم، چې په هغې کې قوي او اغېزمن کلمات وي او خلکو ته يو پيغام ورسوي. کله چې د حقوقو پوهنځي ته تلم. ګيتار به مې غږاوه. (ډېر آرام خو په قوي احساس) او ما غوښتل، چې بيا هغې مينې ته ورسېږم. تاسې پوهېږئ چې کله کله زموږ د مخکنيو ارمانونو د پوره کولو لپاره مناسب وخت نه وي. نو صبر مې وکړ. په همدې

وخت کې ال پاچینو لاري کینګ ته ویلي و: "ته یوازې د هغو فشارونو او اندېښنو په اندازه لویي او عظمت لرې چې ته یې لرې." د اورنج رکورد لیبل په سټډیو کې له خپلو دوو غوره ملګرو سره مې اړیکه ونیوله او خپل نظر مې له هغو سره شریک کړ. فکر وکړئ، چې څه وشول، که څه ونغواړئ ترلاسه کولای یې هم نشئ. فوراً یې له ما سره هوکړه وکړه .

په سټډیو کې د دې دوه تېرو ورځو په لړ کې ما ډېر قوي او خلاق خلک ولیدل. لیکوالان، موسیقي پوهان، آرمانیان او راتلونکي غوښتونکي. ټول سره راټول شوي و، چې له ماسره مرسته وکړي، چې د هغو کسانو لپاره چې د غوره ژوند غوښتونکي دي، هغو ته یوه غوره سندره خلق کړم؛ له نبوغ سره یو هنري کار. ما باید خپله سندره ویلې وای، باید ګیتار مې غږولای وای، باید د خپل ځان د امنیت له ساحې وتلای وای او بیا یو تازه کاره سړی شوی وای. ټل داسې پوښتئ، چې څنګه؟ ډېر خوندور و. (که تاسې زما دا کار لیدل غواړئ نو په CNN robin Sharma.com کې یې لیدلای شئ.) د سندرې د اجرا کولو په وخت وېرېدلی او حیران شوی وم، ډېر خوښ او خوشحاله وم، ولړزېدم او ومې خندل. داسې یوه تجربه وه، چې هیڅکله یې نه هېروم. دا د یو شخصي- داستان

تجربه وه، چې ژوند یې نوموم. نو ته هم هلته لاړ شه، فکر وکړه، پوښتنه وکړه، موخې وټاکه، په ځمکه ولوېږه، ماتې وخوره، هیچا ته هم د دې اجازه مه ورکوه، چې تاته ووایي ستا هیلې او ارمانونه نه ربښتیا کېږي. بلاخره داسې یو څوک پیدا کېږي چې ستا خوبونه ربښتیا کړي، نو ولې هغه شخص ته خپله و نه اوسې؟

**هیچا ته هم د دې اجازه مه ورکوه، چې تاته ووایي ستا هیلې او ارمانونه نه ربښتیا کېږي. بلاخره داسې یو څوک پیدا کېږي چې ستا خوبونه ربښتیا کړي، نو ولې هغه شخص ته خپله و نه اوسې؟**

# ۴۴. په هڅه کې هم افراط مه کوه

د ژوندانه د سمولو یو اصل دا دی، چې بریا د کارونو د ترسراوي او په خپل سر د کارونو ترسراوي ته د اجازه ورکولو ترمنځ د یو ډول ملایم تعادل نتیجه ده. هو موږ مسئول یو، چې خپلې موخې وټاکو، خپل ظرفیت هم تشخیص کړو او تر ټولو غوره حالت مو ارایه کړو. موږ باید خپل کار ترسره کړو. ښې پېښې حتماً هغو کسانو ته پېښېږي، چې د ښو کارونو ترسراوي ته جدیت کوي. زه فکر کوم، چې موږ دېته اړتیا لرو، چې د ژوند پېښو ته د دې فرصت ورکړو چې ځان څرګند کړي. یا په بله وینا خپله هڅه وکړه بیا ژوند ته د نورو کارونو د ترسره کولو اجازه ورکړه .

ژوند تل تا هغه ځای ته هدایتوي چې تاته غوره وي. (حتی هغه وقت چې داسې نه ښکاري هم.) ما دا موضوع زده کړې چې دا ډېره مهمه ده، چې ته اجازه ورکړې چې ژوند ستا رهبر و اوسي. (دا کوم آسانه درس نه دی، پوهېږم، خپله هم لا تر اوسه تمرین کوم.) هغه کار چې ته غواړې ترسره یې کړې که د هغه کار لپاره هر هغه څه دې کړي وي چې باید ترسره کړي دې وای، خو پلانونه دې عملي شوي نه وي نو ډېره هڅه مکوه، آرام اوسه،

ښايي کومه غلطي يا تېروتنه نشته وي، ښايي مناسب وخت يې رارسېدلی نه وي. ښايي هغه څه چې تا غوښتل هغه ستا لپاره ډېر مناسب نه و. هغه دروازه چې ستا پر مخ تړل شوې ښايي د هغې پر ځای بله دروازه دې پرمخ پرانيستل شي. زياتره وخت که هغه شی خوشې کړې چې تا فکر کاوه هغه ډېر غوره او ښه و، نو د يوې ښې پېښې لپاره به درته لاره خلاصه شي، ځکه هره پايله د يو نوي پيل لاره درته خلاصوي .

---

**ژوند تل تا هغه ځای ته رهنمايي کوي چې ستا لپاره غوره وي.**

---

## ۴۵.د هنداري ازموينه

زما په اند پوهېدل ډېر مهم دي، کله چې په سمه توګه پوه شوې، بيا کولای شې هغه کار سم تر سره هم کړې. د ډېرو معلوماتو پر مټ کولای شې چې غوره ټاکنه وکړې او لا ډېره پوهه لاسته راوړې. د دې لپاره چې پوه شې په راتلونکې کې څه ډول شخص درنه جوړېږي او خپلې موخې ته د رسېدو لپاره دې سمه لاره ټاکلې ده او که نه، شفافيت هغه چوکاټ دی چې د ځيرکانه ټاکنې لاره درته اسانوي او کولای شې چې خپلې پرېکړې عملي کړې.

د هنداري ازموينه، دا ستا لپاره غوره وسايل دي. خپلې راتلونکې ته وګوره او له ځانه وپوښته: هغه کوم کار دی چې په کولو سره يې نن زما شخصي- او حرفوي ژوند د لويوالي او عظمت بلې مرحلې ته رسېږي؟ وروسته د دې کار په اړه فکر وکړه، د ترسره کولو لپاره يې غور او فکر وکړه او سرته يې ورسوه. اوس، دا خبره ذهن ته وسپاره چې: د ورځنيو کوچنيو کارونو په غوره او سمه توګه ترسره کول، موږ غوره او ګټورو پايلو ته رسوي.

**له ځانه دا پوښتنه وکړه: هغه کوم کار دی چې په کولو سره يې نن زما شخصي او حرفوي ژوند د لويوالي او عظمت بلې مرحلې ته داخلوي؟**

## ۴٦. داسې ملګري پيدا کړه چې په غوښتنې دې راولي

ښه، دا کړنه کېدای شي چې تا له ستونزو سره مخ کړي، کېدای شي تا وپاروي او يا دې هم په غوسه کړي. (که داسې وي نو خپل کار مې په ښه توګه ترسره کړی دی.) ځکه موږ له داسې فکرونو سره وده کوو چې موږ تر فشار لاندې راولي او يوازينی کار چې غواړم ترسره يې کړم، دادی چې له تا سره مرسته وکړم تر څو وده وکړئ. (وده وکړئ څو خپل عظمت او لويوالي ته ورسېږئ.)

د دې فکر او نظريې اصلي ټکی دا دی چې پوه شې، څه ډول کسانو ستا شاوخوا احاطه کړې ده او تا له هغه پولو او سرحدونو را وباسي چې ته پکې د ارامۍ خوبوه وهې. ولې بايد ستا په ژوند کې داسې ملګري هم وي چې په ډېر معمولي او عادي حد کې ژوند کوي؟ ولې بايد ستا د کار په ساحه کې داسې کسان موجود وي چې غواړي د ټل لپاره د ژوند په منځنۍ سطحه کې پاتې شي؟ موږ په رښتيني ډول د هغه کسانو په څېر کېږو چې قهوه ورسره څښو. موږ د هغه کسانو په څېر کېږو چې ورسره ناسته ولاړه کوو. له چا سره چې اوسې په خوی به د هغو شې.

یو پیاوړی فکر: تاسو د هغه پنځه کسانو په څېر کېږی چې خپل ډېر وخت له هغوی سره تېروی. ( هیلمن یم چې تاسو مې نه وی وېرولي.) نو له تاسو نه مې هیله داده چې خپل شخصي- او حرفوي ژوند ته داسې کسان را وبولئ چې ستاسو لپاره الهام بښونکي وي، داسې کسان چې تاسو لوړ کړي، داسې کسان چې له تاسو نه یو خارق العاده، مینه ناک او نه هېرېدونکی کس جوړکړي، داسې کسان چې نړیوالو ستندردونو ته د رسېدو احساس ولري، له ټولو نه اړین، داسې کسان چې نړۍ ته له یوې بلې زاویې گوري. دا کسان تاسو له ستونزو سره مخ کوي، پر تاسو باندې فشار راولي او کله کله مو په غوسه کوي هم. (که داسې وي نو ستاسو لپاره غوره ده) د دوی دا کړنه ستاسو لپاره ډېره جوړوونکې ده تر څو وده وکړئ، تکمیل شی او نور د مخکې په څېر ونه اوسی.

ولې باید ستا د کار په ساحه کې داسې کسان موجود وي چې غواړي د تل لپاره د ژوند په منځنۍ سطح کې پاتې شي؟ ولې باید ستا په ژوند کې داسې ملګري هم وي چې په ډېر معمولي او عادي حدکې ژوند کوي؟

## ۴۷. په خپل ځای کې نوښت وکړه

نړیوالو ستندړډونو ته د رسېدو لپاره اړینه ده چې یو غوره نوښتگر و اوسې. ستړیا مه منه، خپل ژوند په غوره بڼه جوړ کړه او په لېوالتیا سره داسې لارې ولټوه چې د ژوند ارزښتونه دې لوړ کړي. دا خبرې په یاد ولره، په ځیرکۍ کار وکړه او په تېزۍ حرکت وکړه. دا د هغه کسانو ځانگړتیاوې دي چې په خپلو کارونو او دندو کې بریالي او پرمختللي دي. په پوره توگه نوښتگر اوسېدل او له فکر نه کار اخیستل د هغه لېندۍ په څېر دي چې د خپل غشي- په شان تا د ژوند لوړو پوړیو ته رسوي.

اړینه نه ده چې د ځنگلونو منځ ته لاړ شې ترڅو یو ارام چاپېریال ولټوې، غوره لیدلوري او بصیرت، د نوښتونو او غوره فکر کولو څخه سرچینه اخلي. دا ځانگړنې تا له خپل اوسني ځای څخه را وباسي او د تکامل لوري ته دې هڅوي.

تام کلي، د آی ډي اي او، شرکت رییس چې د سیلیکان په دره کې اوسېږي، وایي: «د ذهن هغه جرقې او برېښناوې چې په تفریحي سواحلو او د سکي لوبو د میدانونو په څېر لوړو سیمو کې

را منځته کېږي، کومه غوره پایله نه لري. ایا غواړې چې ستا د ټیم ملګري فکر وکړي چې کولای شي یوازې په لوړو سیمو کې د لوبو کولو څخه الهام واخلي؟ تېروتنه مه کوه، دا ډول سیمې ډېرې ښې دي مګر د دې سیمو نوښت او فکر تلپاتې نه دی. دا په یاد ولرئ چې «د نوښت او غوره فکر انګېزې د خپل کار په ساحه کې تجربه کړئ، په داسې ښه چې دوام او مقاومت یې د ساحلي نسیم په څېر تلپاتې وي.» څومره ښه یې ویلي دي.

---

**نړیوالو ستهندرډونو ته د رسېدو لپاره اړینه ده چې یو غوره نوښتګر و اوسې.**

---

## ۴۸. په مور او پلار اوسېدو ویاړ کول

مشرۍ لـه کـوره پیـل کېږي. ستاسـو کـورنۍ داسـې یـوه ټولنـه ده چـې بایـد مشرـي یـې وشي، سـتاینه یـې وشي او پرمختـګ وکـړي، څـو یـو غـوره او ارام ژونـد ولـري، هغـه څـه چـې ستاسـو کـورنۍ یـې حقـداره ده. دغـه راز زه بـاور لـرم چـې زمـا د ژونـد رنګینـې شېبې هغـه دي چـې له هغه کسانو سره یې تېروم کوم چې مینه ورسره لرم.

بیانکـا مـې ښـوونځي تـه بوتلـه. یـو مـوټر مـې ولیـد چـې ډېـر حیرانـــوونکی مطلـــب «پـــلاک نمـــبر[19]» پـــرې لیکلـــی وو: PKIDSPROC [20] (ټوکي او خندوونکی اوسه) ومې خندل.

څـومره پـه خپلـو اولادونـو ویـاړئ؟ ایـا ستاسـو اولادونـه ستاسـو لپـاره لومړیتـوب لـري؟ زمـا اولادونـه څـو زمـا لپـاره ویـاړ او لومړیتـوب دی. کـه زمـا اولادونـه زمـا نشـتون هـس کـړي د سـترګو پـه رپ کـې خپـل ټـول کارونـه پرېـږدم تـر څـو لـه دوی سره اوسـم. ایـا لـه خپلـو اولادونـو سره د

---

۱۹- پلاک نمبر: په امریکا کې د یوې ټاکلې اندازې اضافي پیسو په ورکولو سره کولای شی چې د خپل موټر لپاره یوه حیرانوونکې او مانا لرونکې لیکنه په خپله وټاکی او د موټر د پلېټ سره په څنګ کې یې ولګوئ. داسې چې دا لیکنه له اته عددونو یا کلمو څخه ډېره نه وي او ادبي اړخ ولري.

۲۰- (ټوکي او خندوونکی اوسه)

اوسېدو کميت او کيفيت مو په پام کې نيولی؟ ديارلس کاله کېږي چې پلار شوی يم او دا حقيقت بايد له تاسو سره شريک کړم چې اړينه نه ده څو زه د خپلو اولادونو لپاره د لوبو کوم وسايل، ډالۍ او يا کمپيوټري ګېمونه چمتو کړم، اړينه داده چې زه څومره وخت له خپلو اولادونو سره تېروم. په حقيقت کې دا هغه څه دي چې دوی يې غواړي. لکه څنګه مې چې په خپل کتاب (د لويوالي لاربنود ۱) کې ليکلي، ډېری لوی او شتمن کسان د خپلو جېټ طيارو په واسطه ټورنټو ته راځي تر څو له ماسره ووينې، دوی ماته وايي، چې هر ډول شتمني لرو خو په حقيقت کې هېڅ هم نه لرو. دوی ځکه داسې وايي چې له خپلو ماشومانو سره يې د خپل ژوند لږې شېبې هم نه دي تېرې کړې، نو ځکه خو يې اصلي شتمني او خوښي له لاسه وتلې ده. پيسې غوره شتمني نه ده، په رښتيا هم نه ده!

نن له هغه کسانو سره مينه وکړئ چې د زړه له تله مينه ورسره لرئ، د هغوی ستاينه وکړئ او هغه څه ورته ووايئ چې تر اوسه مو يې د ويلو جرئت نه دی کړی. هېڅکله به په دوی باندې د وياړ کولو څخه پښېمانه نه شئ، هېڅکله هم نه!

# ۴۹. پټ مېکانيزم

په نړۍ وختونو کې مې د ټايمز[۲۱] له نشراتو څخه يوه مقاله ولوسته. د نړۍ د سلو نفوذ لرونکو کسانو په اړه وه. د دې سلو کسانو په منځ کې د جابز[۲۲]، برانسون[۲۳] او ګور[۲۴] په څېر کسانو نومونه هم راغلي وو. ميتها[۲۵]ل او اپرا، هم پکې وو، مګر يو څه چې زه يې ډېر حيران کړم، د «ليوناردو ډکاپريو[۲۶]» په اړه و. نوموړی د مارتين اسکورسس په وينا يو فلم جوړوونکی و. کله يې چې د لومړي ځل لپاره دکاپريو د نقش لوبلو پر مهال وليد، ورته ويې ويل: « خپل رول دې د يو ماشين په څېر ونه لوباوه.» د دې کلمو د لوستلو وروسته مې د مقالې لوستل بند کړل.

---

استادان تل خپل کارونه داسې ترسره کوي چې نورو ته اسانه ښکاري. غوره شخص خپله مسلک او کسب په داسې ځيرکتيا، ارامۍ او ښکلې بڼه تر سره کوي چې لږ تر لږه ما او تا ته خپل کار ډېر اسانه ښکاروي.

---

۲۱ ټايمز: په متحده ايالاتو کې د يوې رسنۍ نوم دی.

۲۲ جابز: د اپل شرکت اجرائيه مدير.

۲۳ برانسون: يو امريکايي شتمن دی

۲۴ ګور: يو امريکايي سياستمدار دی.

۲۵ ميتال: يو شرکت لرونکی هندی دی.

۲۶ دکاپريو: په امريکا کې د تلوېزيوني برنامو يو مشهور مجري دی.

مـوږ یـې د تـر سره کولـو پـه جزیـاتو او طریقـه نـه پـوهېږو، مـوږ یـې نـه وینـو چـې دا کـس شـپه او ورځ هڅـې او کوښـښ کـوي، سـهار وختـي لـه خوبـه پـاڅېږي او د شـپې تـر ناوختـه پـورې کـار کـوي څـو پـه نـړۍ کـې ښـه والي تـه ورسـېږي. مـوږ د غـوره کسـانو قـوي ارادې تـه پـام نـه دی کـړی څـو وګـورو چـې دوی څـومره زحمتونـه ایسـتلي، لـه خپلـو لارو یـې خنډونـه لـرې کـړي او خپلـو هیلـو تـه یـې د عمـل جـامې ور اغوسـتې دي. مـوږ نـه دي اورېـدلي چـې دې کسـانو دې د نیوکـه کوونکـو خلکـو خنـداګانو تـه غـوږ نیـولی وي او خپـل لویـوالي او عظمـت تـه دې نـه وي رسـېدلي. دا هغـه څـانګړي لوبغـاړي دي چـې خپلـې کړنـې پـه مسـلک، سیاسـت، زده کـړه، روزلـو او نـورو کـارونو کـې داسـې پـه طبیعـي ډول سرتـه رسـوي چـې د نـورو پـه نظـر ډېـر اسـان ښـکاري مګـر د دوی کـار هېڅکلـه اسـانه نـه دی. یـوازې قـوي اراده، غـوره فکـر او نوښـتګر ذهـن لـري، پـه سـمه توګـه تـرې ګټـه اخـلي او دا کړنـې کلونـه وخـت نیسي- څـو د خپـل عظمـت او لویـوالي یـوې څنـډې تـه ورسېږي. را ځئ چې دا موضوع له یاده ونه باسو.

استادان تل خپل کارونه په داسې ښه ترسره کوي چې موږ ته اسان ښکاربږي. غوره کسان خپلې کار او کسب په ځیرکتیا، ارامۍ او ښکلې ښه سرته رسوي چې لږ تر لږه موږ او تاسو ته یې اسانه ښکاره کړي، خو داسې اسانه هم نه ده.

## ۵۰. فرصت ته مه په تمه کېږي

تاسو پوهېږی، ما هېڅکله دا ادعا نه ده کړې چې زه کامل یم او نیمګړتیا نه لرم. هېڅکله مې نه دي ویلي چې زه یو لوی ښوونکی یم، په رښتیني توګه خپل عظمت او لویوالي ته د رسېدو په خاطر تل هڅې کوم. زه ډېر عادي انسان یم مګر وړتیاوې لرم. تر څنګ یې نیمګړتیاوې هم لرم. (د بل هر انسان په څېر) زما د کمزوریو له ډلې څخه یو هم بې صبري ده. دا لېوالتیا لرم څو لوی کارونه ترسره کړم. نه شم کولای چې تکراري ژوند وکړم. زه باید اغېزناک و اوسم او له خپلو وړتیاوو څخه ګټه واخلم. (مور تول وړتیاوې لرو).

د ټولو کمزوریو په څېر دا هم د بریالیتوب یوه سرچینه ده. هر شي ته په تېزۍ سره مخ پر وړاندې ور دانګم، د سرعت مینوال یم. پایلې راته اړینې دي. د هغه جملې په اړه خبرې کوم چې کلینټ ایسټووډ د بېسټ لایف په مقاله کې لیکلې وه، هغه ویلي وو: «ځینې وخت باید د ښو پایلو د لاسته راوړلو لپاره په خپله خپل کارونه ترسره کړئ.» په ربښتیا هم.

هـو، حـتماً، لـه خپـل تـیم سره کـار وکـړه. بلــې، مرسـته وکـړه. کارونـه هغه چاته وسپاره چې تـوان يـې ولـري، البتـه هغـه وخـت چـې تـه تـرې عاجز وې. خـو کلـه چـې نـور د دې لپاره په تمـه وي خـو يـو بـل څـوک لـومړی گـام واخـلي، تـه هغـه کـس اوسـه چـې لـومړنی گـام اخـلي. زمـا پـه نظـر دا کـار د عمـل کولـو لپـاره جرئـت دی. پـه حقيقـت کـې دا ستا لپاره لـه ژونـد څخـه پـه سـمه توگـه گټـه اخيسـتل دي. زمـا پـه بـاور دا يـو ډول مشرـي او د خـارق العـاده اوسـېدو لپـاره سـتا ټينگـار او تاکيد دی.

---

**کله چې نور د دې لپاره په تمه وي خو يو بل څوک لومړی گام واخلي، ته هغه کس اوسه چې لومړنی گام اخلي.**

---

## ۵۱. د غوره اړیکو لپاره لومړني اصول

ستاسو د ژوند ښه والی ستاسو د اړیکو د ښه والي سره تړلی دی. ستاسو اړیکې ستاسو د کار له مشرانو سره، ستاسو اړیکې له هغه شرکتونو سره چې تاسو ته لباس چمتو کوي، ستاسو اړیکې له هغه چا سره چې مینه ورسره لری، او ستاسو اړیکې له خپل ځان سره ( دا یوه یې ډېره اړینه او مهمه ده). دې ته ژمن و اوسه چې غوره اړیکې رامنځته کړې څو یو ښه ژوند ته ورسېږې. بشر- د دې انګېزې درلودونکی دی چې کولای شي ښې اړیکې ولري. په یاد ولرئ چې د بریالیتوب راز، د ژوند د اصولو په رعایت کولو کې دی.

لاندې اووه برخې ډېرې ساده، خو په عین حال کې ډېرې مانا لرونکې دي، ایا ټول حقیقتونه داسې نه دي؟

- لومړنی کس چې سلام اچوي هغه ته خپله اوسه. ( په هر ژبه چې وي: نمستې، شلوم، اولا، اسلام علیکم او یا په بله هره ژبه چې د سلام ورکولو مانا ولري.) کله چې له یو چا سره مخ کېږې. یا په بل عبارت، لومړی ته مهرباني وکړه. (دا جرئت غواړي ځکه چې موږ له نه منلو وېره لرو.)

- ډېره موسکا وکړه، د پېژندلو غوره لاره همدا ده. په یاد ولره د لېدو په لومړو څو دقیقو کې ډېر اغېز کېدای شي.
- خلکو ته په خپلو نومونو غږ وکړه، دا ډېره اړینه ده، دا ښيي چې تاسو هغوی ته ارزښت ورکوئ او دا د درناوي ښکارندویي هم کوي.
- له خلکو سره د خبرو پر مهال د هغوی سترګو ته وګوره!
- په نړیوالو ستندرډونو برابر اورېدونکی اوسه. که په دې موضوع سم پوه شوې، «د اړیکو اتل» به وبلل شې. ډېری خلک غوږ نه نیسي- او نه اوري. ځینې خلک دومره پر خپل ځان تمرکز کوي چې کله له بل چا سره خبرې کوي، سمې پوښتنې نه شي کولای. د خبرو پر وخت نورو ته غوږ نیول او پوښتنې کول انسان پیاوړی کوي. دا ښيي چې تاسو پر خپل ځان مین نه یاست، بلکه په خبرو اترو کې برخه لرئ. غوږ نیول په دې مانا هم دي څو د مقابل لوري خبرې پای ته ورسېږي، څو له هغه وروسته زه خپلې خبرې پیل کړم.
- د خلکو ستاینه وکړئ، مګر په صداقت او سپېڅلي نیت سره. د خلکو صفت کول وړیا دي، کوم لګښت نه لري. هېڅکله د مقابل لوري د تعریف او ستایلو موکه له لاسه مه ورکوئ، هغه که په کور او یا هم په کار ځای کې وي. دا کړنه د مقابل لوري په وجود کې غوره حس را ژوندی کوي او دا حس بېرته تاسو

ته لېږدوي. کله چې د خلکو سره خدای پاماني کوئ، په دې باوري شئ چې په دوی کې مو غوره حس رامنځته کړی دی.

- زمونږ چلند باید له نورو سره داسې وي لکه د تل یې چې له یوه شریف کس سره کوو. (له ټولو سره دا ډول چلند وکړئ. زه له هغه کس څخه وېرېږم چې له ما سره ښه چلند کوي مګر د یو رستورانت له کارکوونکي سره بې ادبانه رفتار کوي ځکه چې د هغه کس په کړنو او چلند کې ثابت قدمي، اخلاص، صداقت او دوام نه لیدل کېږي.» له خلکو سره داسې چلند وکړه چې ګواکې بیا به یې هېڅکله نه وینې. هره ورځ چې کله له کار څخه کور ته راځم، اولادونه مې مخې ته منډې راوهي او ما په غېږ کې نیسي- دوی هره ورځ دا کړنه ترسره کوي، زه احساس کوم چې یو پاچا یم.

هو، نومونړي اووه اصول ډېر ساده دي. دا اصول تمرین کړه تر څو له هغه چې ته یې فکر کوې، زر د نېکمرغۍ لوړو پوړیو ته ورسېږې. په ټولنه کې د لوړوالي شان او شوکت پر اصولو له برلاسي او تسلط څخه سرچینه اخلي.

**هېڅکله د مقابل لوري د تعريف او ستايلو فرصت له لاسه مه ورکوئ.**

## ۵۲. له تېرې زمانې د ځان په ګټه کار واخلئ

د تفکر ډېرى مربيان او ښوونكي موږ ته دا توصيه كوي چې په خپل ماضي كې ژوند ونه كړو. موږ ته دا خبره تر غوږ را تېروي چې «په حال كې ژوند وكړئ»، «ماضي د ارام كولو يو ځاى و.» ډېر ښه، زه پوهېږم چې دوى څه وايي. ايا په تېر وخت كې يوه غوره موضوع او داسې شېبې شته چې موږ ترې ګټه واخلو؟ ايا د ماضي د تجربو نه بايد كوم څه زده نه كړو؟

دا موضوع ما خواشينى كوي. زما په نظر د ماضي په لور ستاسو سفر، ستاسو په فكر او پرېكړې پورې اړه لري. كه ستاسو مطلب ماضي ته له سفر كولو نه دا وي چې هغه خواشينوونكي پېښې او دردوونكې تجربې را په ياد كړئ چې د تغير وس او توان يې نه لرى، زه تاسو ته وايم چې ستاسو دا كار ډېر ورانوونكى دى. تاسو د دې كړنې په وسيله يوازې خپل وخت ضايع كوى او تاسو له پرمختګ څخه وروسته پاتې كوي. خو كه مو ماضي ته له سفر كولو څخه موخه دا وي چې له پېښو څخه يې درس واخلى او د خوښيو ډكې شېبې يې در په زړه كړى، فكر كوم چې دا ښه كار

دی، ځکه چې تاسو له خپل تېر وخت نه د ځان په ګټه کار اخلی او خپل خدمت پرې کوئ.

هغه موضوع چې غواړم په پام کې یې ونیسئ، دا ده چې ضرور نه ده څو په ناپامۍ سره ماضي ته ور وګرځو، په داسې حال کې چې د بدو پېښو د تغیر او بدلون وس یې هم نه لرو. مګر د خوښیو ډکو شېبو څخه د مننې په پار تېر وخت ته سفر کول یو غوره او د هوښیارۍ کار دی. ستاسو د تېر وخت ستونزې هغه څه دي چې په راتلونکي کې ستاسو موقعیت او مقام ټاکي.

---

**ایا په ماضي کې مو داسې شېبه او داسې یوه موضوع شته چې په اړه یې فکر وکړو؟ ایا د تېر وخت له تجربو څخه زده کړه او له زده کړې څخه یې خوند وا نه خلو؟**

---

## ۵۳. پر نورو باور وکړئ

اولادونه مې د هیلري سوانک د یو فلم د لیدو لپاره بوتلل. چې د ازادۍ لیکوالان نومېدو. زما لپاره الهام ښوونکی و. په سترګو کې مې اوښکې راتولې شوې وې. د دې لامل شو څو غوره و اوسم، ډېر عمل او ډېره ښه وکړم. د دې لامل شو څو خپل کارونه لا ښه کړم، تر خپلې وروستۍ کچې.

هغه څه چې ما له دې فلم څخه زده کړل دا و چې، مشري یعنې په ژوند باندې باور درلودل، پر نورو باور درلودل او پرځان باور درلودل. په داسې حال کې چې نور دربانديې باور نه لري. د فلم ماشومان ډېر ناروغ او په ستونزو کې وو. ډېر سخت ژوند یې درلود. زړونه یې سخت شوي وو، خو ښوونکو د دوی اصلي جوهر موندلی و. دا زده کوونکي ځیرک وو، ښه او مهربان انسانان وو خو دوی روحي صدمه لیدلې وه او د هېڅ شي په فکر کې نه وو. په ښوونځیو کې یې نوي کتابونه نه ورکول، د ښوونځي مشرانو دوی بې ارزښته ګڼلي وو مګر ښوونکي یې دوی ته ارزښت ورکاوه او له دوی سره یې په درناوي چلن کاوه. ښوونکي یې دوی ته کتابونه اخیستل. (له دې سره ښوونکي دوه اضافي دندې درلودې.) ده به

په زده کوونکو فشار راوړ. د دوی شتون ته یې ارزښت ورکاوه، پر دوی یې باور درلود، دوی بدلون وکړ ځکه چې کله د یو چا غوره ځانګړتیا او خصلت وینې، هغه خپل غوره خصلت او ځانګړتیا تاته لېږدوي.

ما دا پېښه د نړۍ په ډېرو شرکتونو کې لیدلې ده. د خلکو د پرمختګ لامل شه، خلکو ته درناوی وکړه او د دوی لپاره الهام بښونکی اوسه. دوی به تر لوړو پوړیو ورسېږي. لکه څنګه چې ښاغلي ښوونکي لیو باسکګلیا ویلي دي: «موږ ډېری وخت د ستایلو، موسکا کولو، له مهربانۍ ډکې جملې ویلو، د یوه اورېدونکي په توګه د غوږ نیولو، صادقانه ستاینې یا یو چاته د ارزښت ورکولو خصلت او ځانګړتیا بې ګټې بولو، په داسې حال کې چې دغه کوچني خواص او کړنې د یو چا ژوند بدلولای شي.

---

**مشري یعنې پر ځان او نورو باور کول، په داسې حال کې چې نور دا باور نه لري.**

---

## ۵۴.تر ټولو غوره تمرین، تمرین دی

د ښاغلي لنس ارم سټرانګ په اړه فکر وکړه، چې د خپلو ورځنیو سختو او ستونزمنو تمرینونو او ډېسیپلین څخه لاس اخلي او هیله لري چې د فرانسې د «تور» سیالیو ګټونکی شي. فکر وکړه، ښاغلی ستیونش له خپل ورځني دروند ورزشي تمرین او د مخکینیو لوبو په اړه له څېړنې او پلټنې لاس اخلي او د دې تمه لري چې په خپل غوره مقام کې دې پاتې شي. د ټایګر په اړه فکر وکړه چې د ګلف لوبو په اړه له خپلې قوي پرېکړې لاس اخلي او د دې هیله لري څو لوبه یې دوه برابره ښه پر مخ لاړه شي. خندوونکې نه ده؟ اوس له موږ څخه څومره کسان د ژوند او سوداګریو په برخه کې ورځني او همېشني تمرین ته ژمن یو؟ ډېر لږ.

څنګه کولای شې چې له تمرین کولو پرته د وځلېږې؟ له تمرین پرته بریا نه شي تر لاسه کېدای. د پام وړ پایلې نا څاپي نه دي، په ژوند کې غوره پایلې په تمرین، تمرکز، او سختو قربانیو سره لاسته راځي. نړیوالو ستېنډرډونو ته د رسېدو لپاره اړینه ده چې

هره ورځ په سختۍ تمرین وکړې، په شوق، علاقه او ستړیا نه منلو سره تمرین ډېر اړین دي.

دا موضوع چې، د یو غوره مشر. کېدو لپاره یوازې هیله مندی او یو ښه انسان کېدو ته اړتیا ده، هسې بېځایه خیالات او د وخت ضایع کول دي. یو پر سله د بریالي کېدو چانس در په یاد کړه. ورځنۍ کوچني پرمختګونه د وخت په تېرېدو سره د لویو لاسته راوړنو او غوره پایلو سبب ګرځي. ورزش کوونکي د تمرین او مشران خپلې حرفې او کسب ته د ارزښت ورکولو په واسطه پر مخ تلای شي. په حقیقت کې دا کسان د خپلو وړتیاوو ډېرولو او خپلو اغېزو ته په پراختیا ورکولو سره د پام وړ او غوره اشخاص کېدلای شي. دوی د خپلې بریا لور ته په ګام اېښودلو او لا ډېر تمرین سره بریالیتوب ترلاسه کوي.

---

**پرمختګ ناخاپي نه وي، د ژوند لویې بریاوې په تمرین، تمرکز او قرباني ورکولو سره ځان را بر سېره کوي.**

---

## ۵۵. درد غوره ښوونکی دی

زه د یو غوره کتاب د لوستلو په حال کې یم، چې نوم یې دی «خوشاله خلک په څه پوهېږي» دا کتاب ډن بېکر لیکلی دی. هغه یو اروا‌پوه او په کنیون رنچ چینل کې د غوره ژوند د خپرونې مدیر دی. غواړم چې ځینې جملې یې له تاسو سره شریکې کړم. دا د ژوند په اړه د ښه لیدلوري او د ژوند د خوښیو او نېکمرغیو سره د توافق او جوړ جاړي درلودلو په اړه غوره او ګټورې جملې دي.

کله چې نوموړی ځوان وو، نوی زېږېدلی زوی یې وفات شو. دې پېښې نوموړی ډېر خواشینی کړ او په یوه ژوره ناهیلۍ کې ډوب شو. هغه د خپلو درسونو په یو کتاب کې لیکي چې ده له ستونزو او کړاوونو څخه زده کړي دي چې: « هر څومره یوه پېښه او درد لوی وي، په همغه اندازه ژور او له مانا ډک درس راکوي. کولای شو چې له ژوند څخه ډېر درسونه زده کړو، هغه درسونه چې هېڅکله یې زده کول نه غواړو. ځینې له دې درسونو څخه نشې کولای چې چاته ووایې څو دوی پرې پوه شي. پوهه او حکمت په سختۍ سره لاسته راځي.»

خـومره ژور کلـمات! هغـه موضـوعات چـې زمـوږ زړه مـاتوي، کېـدای شي پـه حقیقـت کـې همـدا موضـوعات وي چـې زمـوږ د زړونـو پـه پرانیسـتلو کـې لویـه برخـه اخـلي. کـولای شـو چـې لـه درد او غـم څخـه گټـه واخلـو. (البتـه کـه وغـواړو چـې درس تـرې واخلـو.) د ژونـد لویـه سـتونزه کـولای شي چـې تـر ټولـو لـويې مـوخې تـه د رسـېدو موقعيـت درته ډالۍ کړي.

**هغه موضوعات چې زموږ زړه ماتوي، کېدای شي په حقیقت کې هغه وي چې زموږ د زړونو په پرانیستلو کې لویه برخه اخلي.**

## ۵۶. تېم دې له تا رنګ اخلي

نن سهار مې چې کله خپل زوی کلبې ښوونځي ته بېوه، د سړک يوې ډلې کار کوونکو زما پام ور واړاوه. د کارګرو مشر ـ ښه ورځ نه وه پيل کړې. کارګرو په سړک باندې کار کاوه او ګڼه ګوڼه يې جوړه کړې وه. د يو ملي بس چلوونکي د ډېرې ګڼې ګوڼې له کبله يو په بل پسې هارنونه کول. د کارګرو مشر ـ چيغه کړه او د سړک په غاړه ولاړې پايې ته يې لغته ورکړه. هغه يوغوسه ناک انسان وو.

وروسته يې پر خپلو کارکوونکو هم ور پرېچ وهل، دوی ته ډېر په غوسه وو په يوه ساه يې خپلې لاړې ځمکې ته تف کولې. د يو لېوني په څېر يې چيغې وهلې. کارګرانو په داسې حال کې چې خپل سرونه يې ښکته ځړولي وو، خپل کار ته دوام ورکړی و. داسې احساس مې وکړ چې دا سړی د ټولو په نظر سپک او ذليله کس دی، مګر خپلې کړنې ته يې دوام ورکړ. خپل قهر او ناولې غوسه يې په عام محضر ـ کې د سړک د پاسه نورو ته ښودله. نوموړی به نن شپه خپلو کارکوونکو ته د ورو کارکولو له امله سپکې سپورې و وايي، کېدای شي چې خپلو اولادونو ته هم په غوسه شي او چيغې ورباندې وکړي.

یو لوی فکر: د ټیم کار کوونکي دې هیڅکله هم له تا نه شي ښه کېدای. تاسو داسې معیارونه وړاندې کوی څو مخکې لاړ شی. هره ګوته مو د لاس په څواک او پیاوړتیا کې خپله اغېزه لري. کله چې شرکتونه ما د خپلو کارکوونکو د مرستې لپاره ور غواړي څو یې د کړنو په ښه والي کې ورسره مرسته وکړم، د دې لپاره چې نړیوالو سټنډرډونو ته ورسېږي او غوره پایلې لاسته راوړي، نو زه په ډېره ارامۍ سره د اطاق د ننه کسانو ته وایم چې «هر څه ستاسو په واسطه پیل کېږي.» ورته وایم چې دا ستاسو تر ټولو ستونزمن ماموریت دی. د نورو ملامتول هېر کړه، دوی ټول ستا لپاره یوازې یو عذر او پلمه ده او دا ټول شرایط ستا د داخلي نړۍ سره پیل کېږي، بهرنۍ مشري د دروني تکامل په اساس پیل کېږي. تر څو چې له خپل ځانه یو عالي انسان جوړ نه کړې، نشې کولای چې یو عالي او غوره شرکت رامنځته کړې.

کېدای شي چې د کارګرو مشر، دې ته اړتیا ولري څو یو ځل هنداري ته وګوري او د خپلو دروني ستونزو د حل لپاره هڅه وکړي، کېدای شي چې له خپلې غوسې سره مخامخ شي، د خپل لنډ فکر درملنه وکړي، خپل شخصیت جوړ کړي او خپل زړه

پرانیـزي. (کېـدای شي چــې ماتــه و وایاســت، رابــین، دا ډېــر اســانه کار دی.) نه، خو زه داسې فکر نه کوم.

دا یــو ســخت کــار دی، (څــو کســه د دې کــار د تــرسره کولــو جرئــت لـري؟) د دې ټکـو مراعـاتول بـه د شرکـت لپـاره پـه کراتـو غـوره پـایلې ولـري، د شرکـت ګټـه بـه لـوړه کـړي او شرکتونـه بـه د خپـل عظمـت لـوړ حـد تـه ورسـوي. ایـا دې مطلـب تـه مـې اشـاره ونـه کـړه چـې هـر کـار ستاسو په واسطه پیل کېږي؟ ځکه چې دا حقیقت لري.

---

**تاسو داسې معیارونه ټاکئ چې بریالي شی او پرمختګ وکړئ، هره ګوته د لاس په څواک او پیاوړتیا کې ځانګړی رول لري.**

---

## ۵۷. موسیقي مو ژوند ښایسته کوي

د سهار څلور بجې دي، قهوه څښم، اولادونه مې ویده دي، د خپلو ورځنیو یادښتونو په کتابچه کې مې یو څه لیکم. (د ورځنیو پېښو لیکل، له ځان سره د خبرو کولو په څېر دي، له تاسو سره مرسته کوي څو غوره کس و اوسی.) د فکر کولو په حال کې یم او د «مانا» (یو پخوانی سندر غاړی دی) یوې سي ډي ته چې ام آر اس کمبایټر نومېږي، غوږ یم. دا سي ډي مې ډېره خوښېږي. پوښتنه مې داده: خپلې نړۍ ته څومره موسیقي رابولې؟

موسیقي له ما سره مرسته کړې ده تر څو له درده ډکو شېبو څخه تېر شم. له ماسره یې الهام ته د اړتیا درلودلو پر مهال مرسته کړې ده، زه یې له شور او مستۍ نه ډک کړی یم او کله مې چې ارامي او راحت غوښتی، هغه یې ماته ډالۍ کړی دی او ژوند مې یې له رنګونو ډک کړی دی. له ما یې یو ویښ انسان جوړ کړی او له نړۍ سره یې وصل کړی یم. زه دا سپارښتنه کوم چې د بریالي ژوند او په کارونو کې د بریالیتوب لپاره باید له شور او شوق نه ډک و اوسو تر څو په خپل ژوند کې ګټونکي شو. موسیقي له موږ سره مرسته کوي څو د ژوند هره شېبه لا ډېره ښه او غوره کړو. زړه

او کلاسیکه موسیقي، د یو روښانه ژوند لپاره یو ښه دلیل دی او
تاسو کولای شی چې له «مانا» نه یې پیل کړئ.

---

**موسیقي له موږ سره مرسته کوي، ډېره مرسته. هره شېبه مو رنګینوي**

**هڅه وکړئ کلاسیکه او پخوانۍ موسیقۍ ته غوږ شی.**

---

# ۵۸. له بهانو او پلمو ډډه وکړئ

«په کار کې مې له دې نه نور نه شم ښه کېدلای.»، «د ورزش لپاره وخت نه لرم.»، « نشم کولای چې دا پروژه پای ته ورسوم او یا خپلې دې هیلې ته ورسېږم ځکه چې ډېره ستونزمنه او سخته ده. نه یې شم عملي کولای.» ډېری انسانان د خپلو عذرونو او بهانو لپاره جنګېږي، هر څومره چې د خپل عذر او بهانو لپاره وجنګېږې، په همغه اندازه یې د ځان په لور جذبوې. هغه څه چې نه یې غواړې، وده مه ورکوه. پرې یې ږده او د پیاوړتیا په لور لاړ شه.

راډیارډ کیپلینګ ویلي دي: «د ماتې لپاره څلوېښت میلیونه دلایل لرو مګر بهانه نه لرو.» بریالي انسانان بهانې نه لټوي. هغوی د پایلو نوښتګر دي. هېڅ داسې غوره او عالي ژوند نشته چې د بهانو او عذرونو په اساس رامنځته شوی وي. نو عذرونه او بهانې مه لټوه. دا هغه بې ګټې خیالونه دي چې تا د ځان لپاره جوړ کړي دي. دا عذر او بهانې ستا د هغه کارونو د کولو مخه نیسي-کوم چې ته یې د کولو نه وېره لرې. هو، د هر عذر او هرې بهانې

تـر شـا وېـره او ډار پـروت وي. د بـدلون او نوښـت وېـره، لـه نـه پېژنـدلو څخه وېره، له ماتې څخه وېره، له بریا څخه وېره.

نـن هغـه ورځ ده څـو د خپلـو عـذرونو او بهـانو پـه لـوري تلـلي پلونـه وسـوځووې. «پـه مهربـانۍ سره دا کـار وکـړه» دا کـار نـن شـونی دی. نـن بـه سـتا لپـاره هغـه ورځ وي چـې خپلـو ټولـو غوښـتنو تـه ورسـېږې. هغـه غوښـتنې چـې سـتا د ژونـد د لارې پـه اوږدو کـې پرتـې دي. نـن کېـدای شي هغـه ورځ وي چـې تـه پرتـه د مشرـۍ لـه لقـب درلودلـو څخـه مشرـي او رهـبري وکـړې او خپـل خـالص عظمـت او لـويۍ تـه ورسېږې.

---

**هېڅ داسې عالي او غوره ژوند به نه وي چې د بهانو په اساس جوړ شوی وي، نو هېڅکله بهانې مه لټوه.**

---

## ۵۹. د اړیکو نوښتگر اوسئ

مشرې لـه ښـو اړيکـو سره ارتبـاط لـري. حقيقـي رهـبران او مشران لـه خپلـو ملگـرو، خپلـو مشـتريانو، او هغـه شرکتونـو سره قـوي اړيکـې لـري چـې دوی تـه کـالي او جـامې چمتـو کـوي. د دې اړيکـو پـه اسـاس کـولای شي هـر چېرتـه چـې وغـواړي، ورسـېږي. (دا کـار د دې لامـل کېـږي څـو مقابـل لـوری هـم لـه دوی سره غـوره اړيکـې رامنځتـه کـړي او د ټـولنې د هـر قشرـ سره د تعامـل وړتيـا پيـدا کـړي.) اسـتثنايي رهـبران او مشرـان پـه ښـه توگـه پـوهېږي چـې څنگـه غـوره اړيکـې ټينگې کړي. هغه هم په ډېره عالي بڼه.

په طيـاره کـې ناسـت وم او د هانـگ کانـگ څخـه د خپـل هېـواد پـه لـور راتلـم، لـه انټرنېـټ سره وصـل شـوم. د دې سـفر پـه اوږدو کـې د کانـاډا د طيـارې يـو مهربانـه کـارکوونکی او خـدمت گـار هڅـه کـوي څـو لـه مسـافرو سره ښـې اړيکـې ټينگـې کـړي. نومـوړي د مسـافرو نومونه زده کـول او لـه هـر يـوه سره يـې پـه وريـن تنـدي چلنـد کـاوه. لـه مانه يې پوښتنه وکړه چې ايا خوړو ته اړتيا لرئ؟ ومې ويل، نه.

( زه کوښښ کوم چې د سفر پر مهال ډېر خواږه ونه خورم.) د نوموړي ځواب ډېر حیرانوونکی و: «فکر کوم چې موږ یط او له خپل له مړښت خوند اخلې.» هغه زه وخندولم او د دې لامل شو څو له یاده یې ونه باسم.

نو تل هغه لارې ولټوه چې د ښو اړیکو د ټینګېدو سبب کېږي، له خپلو ملګرو سره، له هغه کسانو سره چې مینه ورسره لرې، له هغه چا سره چې ژوند ورسره کوې او له هغه نا پېژانده کسانو سره چې سفر ورسره کوې. دا هر څه د ژوند په نوم یادېږي. په دې سره نه یوازې د خپل کسب له پرمختګ سره مرسته کوې، بلکې په یو خوښ او نېکمرغه انسان بدلېږې.

---

**تل هغه لارې ولټوه چې د ښو اړیکو د ټینګېدو سبب کېږي، له خپلو ملګرو سره، له هغه کسانو سره چې مینه ورسره لرې، له هغه چا سره چې ژوند ورسره کوې او له هغه نا پېژانده کسانو سره چې سفر ورسره کوې. دا هر څه د ژوند په نوم یادېږي.**

---

## ۶۰.کوم تکي مو له نورو بېلوي او بریالي کوي؟

د ستاربري وان په نوم د باسکېټبال بوټونه، هغه بوټونو ته ډېر ورته دي چې نایک او ریباک کمپنۍ یې تولیدوي. د نیکز نیویارک په نوم د باسکېټبال د ټیم ساتونکی لوبغاړی او همدارنگه ماربوري (د باسکېټبال یو نوم وتی لوبغاړی دی) دواړه دا بوټونه په لوبو کې په پښو کوي. دا بوټونه ډېر دوام کوي.

هغه کومه ځانګړتیا ده چې دا بوټونه یې دومره خاص کړي دي؟ په دې خاطر چې دا یو جوړ بوټونه په څوارلس ډالره او اته نوي سېنټه دي؟ (په رښتیا هم) عالي او غوره شرکتونه هغه تکو ته پام کوي چې له نورو شرکتونو یې مخکې کوي. هغوی له خپلو رقیبانو سره د سیالۍ په لارو پوهېږي او په بازارونو کې په خپل نوم لوړولو دومره تمرکز کوي څو ټوله نړۍ د دوی ځانګړتیاوې او غوره تولید وپېژني. تلساء (د موټرو د تولید یو شرکت دی) اوس اوس یې داسې یو موټر بازار ته وړاندې کړی چې بیه یې سل زره ډالر ده. اوس دې ته پام وکړه چې په یو ساعت کې له صفر څخه تر سل کیلو مترو پورې واټن په څلورو ثانیو کې طی کوي، د بټرۍ په

واسطه کار کوي او هره بهترۍ یې تر سل زره مایلو پورې دوام کوي؛ ځانګړي او استادانه ټکي.

نو د متفاوت اوسېد جرئت ولره، په صنعت کې د داسې نوښتونو پنځوونکی اوسه چې تر اوسه نه وي رامنځته شوي. د پام وړ نوښتونه وکړه، تل غوره اوسه او لویې هیلې ولره. هغه ټکي وپېژنه چې تا له نورو نه ځانګړی کوي او پرمخ دې بیایي، که دا ځیزونه ونه پېژنې، څنګه کولای شې چې خپل شرکت ته نوم ورکړې او د نورو شرکتونو په منځ کې یې وځلوې، څنګه کولای شې چې دا ځانګړتیاوې نورو ته ولېږدوې؟

---

**هغه ټکي وپېژنه چې تا له نورو نه ځانګړی کوي او پرمخ دې بیايي، که دا ځیزونه ونه پېژنې، څنګه کولای شې چې خپل شرکت ته نوم ورکړې او د نورو شرکتونو په منځ کې یې وځلوې، څنګه کولای شې چې دا ځانګړتیاوې نورو ته ولېږدوې؟**

---

## ۶۱. وخت په چټکۍ تېرېږي، نو ګټه ترې واخلئ

«بیانکا» مې نن ښوونځي ته بوتله، کله چې په کوچنیو قدمونو له مانه لرې کېده، ورته ومې کتل. د خپلو ملګرو خواته ور روانه وه. اوس لویه شوې او یوولس کلنه ده. تېر وخت یې کټ مټ لکه پرون داسې راته ښکاري چې په اوږو به مې کېنوله، یوې او بلې خواته به مې وړله. د لوبو شیان به مې ورته اخیستل او کله به یې چې رسامي کوله، ورته کتل به مې. اوس د اوریل لاویګن، بیانسه او هیلاري ډاف سندرې اوري. لکه څنګه مې چې مخکې وویل، غواړي په راتلونکي کې د جاز سندرو ویونکې شي. (کله چې کوچنۍ وه، غوښتل یې چې د غاښونو ډاکټره شي او یا هم د یوه کوچني پلورنځي څښتنه څو یو ډالري شیان پکې وپلوري.)

د موسیقي پېژندونکو له ډلې څخه زما د خوښې وړ کس «للوید کول» دی، نوموړی انګلیسي- شاعر یوه سندره لري چې زموږ پام دې موضوع ته را اړوي: وخت د هغه الوتکې په څېر دی چې په ډېره تېزۍ سره د پرواز په حال کې وي. سترګې مه رپوه، مخکې له دې چې ستا پام شي، اولادونه دې له تا څخه تللي دي، تللي

دي ترڅو خپل ژوند پیل کړي. وخت هم دا ډول دی. د میده ریګ په شان مو له لاسه تویېږي.

همدا نن په رېښتیني توګه له هغه کسانو سره مینه وکړه چې له زړه نه مینه ورسره لري. په خپل کار کې غوره اوسه. د هر کار لپاره نوی او اضافي ګام پورته کړه، په صداقت سره خبرې وکړه، په شرافت سره ژوند وکړه او په ځنګ کې یې له ژوند څخه خوند واخله، ځکه چې یوه ورځ به دې وخت پای ته ورسېږي. وخت په چټکۍ سره تېرېدونکی دی.

**د هر کار لپاره نوی او اضافي ګام پورته کړه، په صداقت سره خبرې وکړه، په شرافت سره ژوند وکړه او په څنګ کې یې له ژوند څخه خوند واخله، ځکه چې یوه ورځ به دې وخت پای ته ورسېږي. وخت په چټکۍ سره تېرېدونکی دی.**

## ٦٢. چوپټيا چېرته ورکه ده

په هوايي ډګر کې وم، په الوتکه کې د کېناستو لپاره کم وخت پاتې و. پرېکړه مې وکړه چې وه ځو لاس وېګاس ته لاړ شم. غوښتل مې چې هلته د درې زره انټرنېټي سوادګرو لپاره په يوه ناسته کې وينا وکړم. يو څه اضافي وخت مې درلود، د هوايي ډګر انتظار خونې ته لاړم ځو يو څه ولولم. ډېره ګڼه ګوڼه وه. د خلکو مبايلونو ته پرله پسې زنګونه راتلل. (د زنګونو غږ ډېر بد لګېده، اوس مې هم چې کله را په ياد شي، د شپې مې له خوبه را ويښوي.) خلکو په لوړ غږ په مبايلونو کې خبرې کولې. يو مسافر په خپل لاسي الکتروني ګېم کې له غوړيو پرته لوبه کوله، موږ ټولو د هغه د فيرونو او له ښامارانو سره د جنګ اواز اورېد. په ډېر لوړ غږ يې خپل ګېم کاوه. په حقيقت کې خندوونکې هم وه. د نړيوال درناوي عبارت مې له خپل مبايل څخه پاک کړ، ځکه چې د دې موضوع مراعاتول نه و.

وروسته په الوتکه کې د کېناستو لپاره د تيارېدو ځای ته لاړم. فکر وکړئ څه به شوي وي؟ شور ماشور، ګڼه ګوڼه، او لا ډېر شور ماشور. درې لوی تلوېزيونونه په دېوال باندې نصب شوي وو.

اوازونـه يـې تـر لسـمې درجـې لـوړ وو، بـاور پـرې سـخت دی. هېڅـا د تلوېزيـون د ليـدلو حوصـله نـه درلـوده، يـوازې د تلوېزيـون لـوړ غـږ د خلکو اعصاب خرابول.

له موږ نـه چـا د خپلـو کړنـو لپـاره اجـازه نـه غوښـته. يـو ځـل بيـا هماغـه گـېم کـوونکی را پيـدا شـو. وگـورئ، زه د ارامتيـا غوښـتونکی يـم، زه د ارامتيـا تـږی يـم. (بـاور لـرم چـې پـه نړيوالـو سـتېنډرډونو برابـرو پـايلو تـه رسـېدل، لـوړ او عـالي عمـل غـواړي. داسـې چاپېريـال غـواړي چـې موږ پکې تازه و اوسو او ساه واخلو. زما باور غوره دی.)

هـو، زه د ټکنـالوژی سـتاينه کـوم. مـوږ تـه د غـوره کـار کولـو او ښـه ژونـد کولـو امکانـات راکـوي. البتـه کـه سـمه گټـه تـرې واخيسـتل شي. مگـر د ارامـو او بـې شـور ماشـوره ځـايونو لپـاره څـه پـېښ شـوي دي؟ شـور ماشـور او گڼـه گونـه د هغـه ځـايونو لپـاره نـه ده چـې مـوږ هلتـه ارام فکـر کـوو، تصـور او خيـالات پـه کـار اچـوو او يـو لـه بـل سره ښـې خـبرې کـوو. ځکـه چـې داسـې ځايونـه مـوږ خپـل ځـان تـه متوجـه کوي، يـو عـالي ژونـد، عظمـت او لويـوالي تـه د رسـېدو لپـاره ورتـه اړتيـا لرو.

شور ماشور او گڼه گوڼه د هغه ځایونو لپاره نه ده چې موږ هلته ارام فکر کوو، تصور او خیالات په کار اچوو او یو له بل سره ښې خبرې کوو. ځکه چې داسې ځایونه موږ خپل ځان ته متوجه کوي، یو عالي ژوند، عظمت او لویوالي ته د رسېدو لپاره ورته اړتیا لرو.

## ٦٣. د زنګ ضد فولادو په څېر شخصیت

د زنګ ضد فولادو کشف یوه د پام وړ اختراع او نوښت دی، خو د یو زنګ ضد شخصیت په اړه څنګه؟ دا شریف شخصیت دی، هغه شخصیت دی چې تکامل ته د رسېدو لپاره هڅه کوي او په هېڅ حالت کې تکامل ته د رسېدو لپاره له کوښښ او هڅې نه لاس نه اخلي. هغه څه چې ستاسو په داخلي نړۍ کې دي باید په ظاهر کې ښکاره شي. مطلب مې دادی، هر هغه څه چې ستاسو په دروني وجود کې دي، په پایله کې مو په ظاهري شخصیت کې را ښکاره کېږي. ستاسو ظاهري ژوند هېڅکله له دروني ژوند څخه غوره او لوی نه دی. ژوند یوه هنداره ده، هغه څه چې یو، منعکسوو یې، نه هغه څه چې غواړو یې.

هغه څوک چې ښکلي او له کمیو پرته خیالات بیانوي او ډېر صادق وي، ښه او مخلص شخصیت دی. په غوره او ارزښت وړ موضوعاتو باندې تاکید کوي او د دوی دا کړنه دوی ته له غوره پایلو څخه پرته بل څه نه ورکوي. دروني وجود د بېروني وجود خالق دی. د تل لپاره.

تېره شپه مې د سپایډر مـن درېیمه برخـه لـه بیانکا سره وکتله. د دې فلم غوره جمله د ټول فلم ښکارندوی وه: «موږ تل د ټاکنو توان لرو، کولای شو چې تل د ښه او بد تر منځ یو وټاکو.» د رهبرۍ، عظمت او لویوالي دا جمله په رښتیا هم چې ډېره ساده ده، مګر اسانه نه ده. (عالي اوسېدل په حقیقت کې د ریښتینولۍ او سادګۍ تر منځ جنګ دی.) په ژوند کې د غوره اوسېدو لپاره هڅې، ژمنې او ډېسیپلین ته اړتیا لرو. ملګري مې نیدو کوبین یو ځل وویل: «د ډېسیپلین بیه د تل لپاره د پښېمانۍ له بیې څخه کمه ده.» دا خبره ډېره ساده ښکارېږي مګر ډېری وخت هغه څه چې ساده وي، لوی حقیقت بیانوي.

---

**موږ تل د ټاکنې توان لرو. تل کولای شو چې د ښو او بدو په منځ کې یو وټاکو.**

---

## ٦٤. خلک پر خپل حال پرېږدئ

غوره مشران د خپل ټیم غړو ته ازادي ورکوي. دوی په واضحه توګه خپلې نظریې د ټیم غړو ته بیانوي او د خپلو ملګرو د پرمختګ مربي توب او مشري کوي، له دې کړنو نه وروسته د خپل ټیم غړي ازاد پرېږدي. ازادي ورکوي تر څو دوی له خپله ځانه غوره کړنې او عکس العملونه وښیي او د پام وړ حل لارې تجربه کړي. تېروتنه، بریا ته د رسېدو یوه برخه ده. خلک غواړي چې د داسې یو شرکت غړي او کارکوونکي و اوسي څو اجازه ورکړل شي چې خپلې وړتیاوې او استعدادونه را څرګند کړي او خپل ځان د شرکت د یو مهم غړي په توګه و ویني. خلک غواړي چې په شرکت کې د ګډون ویاړ ترلاسه کړي او کوښښونه یې ګټور واقع شي. موږ په رښتیا د دې تر یو چې پوه شو، زموږ د ژوند کولو طریقه او هغه کارونه چې کوو یې، پرنورو اغېزه کوي که نه. ایا پرېږدئ څو ستاسو د شاوخوا خلک دا موضوع تشخیص کړي او په اړه یې څېړنه وکړي؟ ځکه، که چېرې تاسو د دې اجازه ور نه کړئ، بل څوک دې کار ته اجازه نه ورکوي.

**خلک غواړي چې د داسې یو شرکت غړي او کارکوونکي و اوسي څو اجازه ورکړل شي چې خپلې وړتیاوې او استعدادونه ښکاره کړي او خپل ځان د شرکت د یو مهم غړي په توګه و ویني.**

## ٦٥. د غوږ نیولو لپاره یوه ځانګړې ورځ

غـوږ نیـول پـه ډېـرو برخـو کـې یـوه ټـولنیزه قاعـده او قـانون دی، هغـه شرکتونـه چـې غـواړي نړیوالـو سـتنډرډونو تـه ورسـېږي، لـه دې قـانون څخـه ګټـه اخـلي. د خلکـو خـبرو تـه غـوږ نیـول پـه هغـوی کـې د ځـانګړي اوسـېدو احسـاس رامنځتـه کـوي. ډېـرى پیـاوړي او ځیـرک کسـان، شرکتونـه لـه دې املـه پرېـږدي چـې د ځـانګړي اوسـېدو او خـاص والي احسـاس نـه پکـې لـري. غـوږ نیـول مقابـل لـوري تـه د درنـاوي مانـا لـري. غـوږ نیـول مـوږ تـه د دې امکـان راکـوي څـو هغـه معلومات چې ورتـه اړتیـا لـرو، لاسته یـې راوړو. فکـر کـوم هغـه څـه چـې غـوارم تاسـو تـه یـې و وایـم دادي چـې، خـاص او نـوم وتي کـارکوونکي، غوره اورېدونکي او غوږ نیوونکي دي.

لـه نـن نـه وروسـته یـوازې یـوه ورځ دا پرېکـړه وکـړه چـې اورېـدونکی اوسـې. (اورېـدل لـه غـوږ نیولـو سره تـوپیر لـري.) د بـل چـا خـبرې مـه پـرې کـوه. کلـه چـې سـتا مخاطـب سـتا سره د خـبرو پـه حـال کـې و، خپل ځـواب دې پـه ذهـن کـې مـه تکـراروه او کلـه چـې کـوم بـل څـوک سـتا سره خـبرې کـوي، د خپلـو پیغـامونو او ایمېلونـو لـه کتلـو لاس واخلـه. یـوازې غـوږ ونیسـه، پـه دقیـق ډول یـې واوره. سر تـر پایـه غـوږ

شـه، ځکـه چـې هـر څـوک خپـل غـږ لـري او مـوږ هـر یـو د دې غوښـتونکي چـې غـږ مـو واورېـدل شي. د خلکـو خـبرو تـه غـوږ نیـول، ستا پر مخ د بریالیتوب دروازې پرانیزي.

---

**هر څوک خپل غږ او خبرې لري. موږ هر یو د دې غوښتونکي یو چې مو غږ واورېدل شي.**

---

## ٦٦. بریالي شرکتونه احساساتو ته په کتو سیالي کوي

یو پیاوړی فکر: اصلي سیالي باید په هغه پیسو باندې تمرکز نه وي چې د پېردودونکو په جېبونو کې دي. (دا موضوع د ډېرو لویو رهبرانو او لاربښود مشرانو په ویناوو کې څرګندېږي.) نه، دا سیالي باید د پېرودونکو د زړونو او احساساتو د جلب لپاره وي. په اوسنیو کسبونو او خدمتونو کې هغه څه چې شرکتونه یې د خپل پېرودونکو د جلب په خاطر ترسره کوي، د پېرودونکو د زړونو د لاسته راوړلو لپاره سیالي ده.

خلک خپلو احساساتو ته په کتو سره پېرل کوي. زه کولمبیایي قهوه څښم. ولې؟ د دې لپاره چې غوره خوند لري او ما خوشاله ساتي. کوښښ کوم له هغه شرکتونو څخه سودا واخلم چې د وجدان او ضمیر درلودونکي دي. ولې؟ ځکه چې دا کار د رضایت او خوښیو د جلب سبب کېږي. زه د ښایسته لباس، کورتی او پتلون مینه وال یم. ولې؟ ځکه چې دا څیزونه ماته ارامي راکوي او ما له خوښیو سره وصل کوي. دا هر څه له احساساتو سره اړیکه لري.

زه غـوارم چـې د خپلـو سـفرونو پـر مهـال پـه دې هوټلونـو کـې پـاتې شـم: پـه نيويـارک کـې د مـرسر هوټـل، پـه ميـامي کـې د وېکتـور هوټـل، پـه فلـورانس کـې د سـووي هوټـل، پـه سـنگاپور کـې د ريټـز کـارلټون هوټـل او گـوا کـې د لـيلا پـالاس هوټـل. ولـې؟ ځکـه چـې دا پـه زړه پـورې او ځـانگړي هوټلونـه دي، پـه دې ځـايونو کـې انسـان د يو ځانگړي او خوندور احساس کوي.

کـه ستاسـو اړيکـه لـه پېرودونکـو سره يـوازې د پېـر او پلـور او پيسـو تـر حـده وي، دوی تاسـو تـه يـوازې د يـو پلـورونکي پـه سـترگه گـوري او بـس. کله چـې ستاسـو رقيـب او يـو بـل پلـورونکی لـه ارزانـې بيـې سره ستاسـو سره سـيالي پيـل کـړي، تاسـو خپـل پېرودونکـي لـه لاسـه ورکـوئ. خـو کـه د خپلـو پېرودونکـو لـه زړونـو او احساسـاتو سره اړيکـه ټينگـه کـړئ، د عمـر تـر پايـه بـه ستاسـو پېرودونکـي احسـان منـونکي وي. د غـوره او ځـانگړو شرکتونـو پېرودونکـي نـه يـوازې دا شرکتونـه خوښـوي بلکـه لـه کـارکوونکو او مـالونو سره يـې مينـه لـري. دا ځانگړتيا شرکتونـو تـه د دې اجازه ورکـوي څـو کلونـه کلونـه خپـل کـار ته دوام ورکړي.

**اصلي سيالي بايد په هغه پيسو متمرکزه نه وي چې د پېردودونکو په جېبونو کې دي. دا سيالي بايد د پېرودونکو د زړونو او احساساتو د جلب لپاره وي.**

## ٦٧. په خپل وخت بیا پوهېدای شی

پرون مې د مصنوعي سپوږمکیو په اړه په یوه خپرونه کې ګډون وکړ. د خپرونې مدیر، جسي- ډایلن له مانه یوه متفکرانه پوښتنه وکړه: «رابین، موږ ټول موخې لرو، ټول الهامونه لرو مګر ځینې وخت مو نقشه نه عملي کېږي. کله به پوه شو چې له دې برنامې نه لاس واخلو؟» په چټکۍ سره مې ځواب ورکړ: «په خپل وخت کې به یې پوه شې.»

هېڅوک په خپل ژوند او کسب و کار کې له نه سترې کېدونکو هلو ځلو او جدیت پرته یو ځای ته نه شي رسېدای. له هڅو نه باید لاس وا نه خلو. ټولې اتلولۍ هغه اتلانو ګټلې دي چې د بریا او ماتو په زغملو او تکرار سره یې تل هڅې او کوښښونه کړي دي. دوی هېڅکله دې ته نه دي حاضر شوي څو میدان پرېږدي او تېښته وکړي. دوی ته توپیر نه لري چې دا کارونه څومره بد، نا شوني او غیر عملي ښکارېږي. اوس مې چې دا وویل، کله کله په ژوند کې داسې پښېمانۍ تجربه کوو او داسې پېښې راته پېښېږي چې زموږ هېڅ ورته پام نه وي. (مشهوره کمیډینه ګیلدا رډنر چې د رحم د سرطان له امله په ۴۲ کلنۍ کې مړه شوه، دا موضوع یې

په ډېره ښه توګه بيان کړې ده: اوس ډېره ښه پوه شوې يم چې په ژوند کې ځينې شعرونه قافيه او ځينې داستانونه څرګند پيل، منځ او پای نه لري. ژوند، يعنې په دې نه پوهېدل چې څه به پېښېږي. ژوند، يعنې دا چې مور اړ يو څو بدلون او تغير رامنځته کړو. ژوند، يعنې شېبې لاسته راوړل او له شېبو څخه غوره موقعيت جوړول، پرته له دې چې پوه شې، په راتلونکي کې څه درته پېښېږي. يوه خوږه پوهه.)

مور د دې غوښتونکي يو څو په ناڅاپي ډول مو هيلې حقيقت پيدا کړي، اړينه نه ده چې څومره هڅه کوو. وربځې نه تيتېږي، د تفريح زنګ ته هم اړتيا نشته. فرصت مور ته موسکا نه کوي. په تيارو کې په سختۍ سره کوښښ کوو. يوازې ايمان مو صدمه ويني. ښه، ډېر ښه. که په رښتيا مو په وجود کې اور لمبې وهي او د وجود هر سلول مو درته وايي چې دوام ورکړه، (ايمان په خپله د عظمت او لويوالي څرګندوی دی.) ځينې وخت داسې ځای ته رسېږې چې بايد خپله ستراتيژي بدله کړې. دا د ناهيلۍ په مانا نه ده. پوهېږې، دا يعنې په ژوند باندې باور کول، په دې باندې باور چې يوه غوره پېښه درته په تمه ده څو ستا مسير ته د ښه والي په لور بدلون ورکړي.

کلونه کېږي چې کوښښ کوم څو په یوه ساده فلسفه ژوند وکړم، چې له دې مخکې مې په دې کتاب کې مطرح کړې ده: هر غوره کار چې کولای شې ویې کړې، ویې کړه او اجازه ورکړه څو ژوند ستا پاتې کار پر مخ بوځي. د یو شي د لاسه ورکول اسان نه دي. (پوهېږم چې څومره دردناک دي) ځینې وختونه د هغه شي له لاسه ورکول چې په رښتیا یې غواړې، د دې لامل کېږي څو له هغه نه غوره شی ستا په تمه وي او لاس ته یې راوړې.

---

**هر غوره کار چې کولای شې تر سره یې کړه، او پرېږده څو ژوند ستا پاتې کارونه پر مخ بوځي.**

---

## ۶۸. د یوه اتل په خبر ژوند وکړه

په همدې نږدې وختونو کې له خپل زوی کلبي سره په الوتکه کې ناست وم، ورځپاڼې مې اړولې، موږ دواړو د هارډي بویز کتاب لوسته. یوه مقاله مې مخې ته راغله، د ترېستن انزوورت په نوم یو دیارلس کلن هلک پکې یاد شوی و، چې اوس مهال په کاناډا کې د خپل کوچني ښار اتل و. څو ورځې مخکې یې یو ټولګیوال په ټولګي کې تر څنګ ناست و او شیریني یې زبېښله. یو هلک خندوونکې خبره وکړه. دا موضوع د دې سبب شوه څو د شیریني یوه ټوټه د هلک ستوني ته تېره شي. د ټولګي ټول هلکان دومره وارخطا شوي وو چې هېڅ یې هم نشوای کولای. د هلک ساه بنده شوه او د مخ رنګ یې والوت. ترېستن فکر وکړ چې د ملګري د مړینې ورځ یې را رسېدلې ده. فکر یې وکړ چې انا یې ورته د هیم لیک (په ستوني کې د بند شوي شي د را ایستلو یو ډول تخنیک دی) چل ښودلی و. هغې په چټکۍ سره له دې چل نه ګټه واخیسته او د ملګري ژوند یې وژغوره؛ څومره ښه.

د ښوونځي مدیر پرون وویل: «هغه تر ټولو ځیرک هلک دی چې تر اوسه مې لیدلی دی.» هغه یو خارق العاده هلک دی.» ستاسو

لپاره یوه غوره کنایه: عظمت او لویوالی په موږ هر یوه کې شته. تاسو کولای شی چې په مسکو کې یو شتمن، په بگوتا کې یو زده کړیال او یا په مانیلا کې یو مدیر اوسی. دا عظمت په هر ځای کې لیدل کېږی. راځئ چې هېر یې نه کړو. راځئ چې خپل ځلېدونکی ذات پټ نه کړو. راځئ چې خپلې ورتیاوې دومره ژورې دفن نه کړو چې له وجود څخه مو د جوهر د له منځه تلو لامل شي. راځئ چې له ترېستېن نه یې زده کړو. راځئ چې مطرح او مهم شخص و اوسو.

**موږ هر یو د عظمت او لویوالي څښتن یو، تاسو کولای شی په مسکو کې یو شتمن، په بگوټا کې یو زده کړیال او یا په مانیلا کې یو مدیر اوسی.**

## ٦٩. ولې پروګرام او مهالوېش جوړ کړو؟

د موخو ټاکل او شخصي- پروګرام جوړول جذاب موضوعات نه، بلکه ډېر اړين کار دی. دا زما د يو عمر د تجربو مرکزي ټکی دی. ما دا موضوع ډېرى وخت د خپلو مراجعينو په منځ کې درک کړې ده. دوى ټل د خپلو هيلو او خوبونو په هکله خبرې کوي، خپلو دې هيلو ته د رسېدو لپاره په ليکلي ډول يوه پروګرام او يو واضح لړليک چمتو کوي. د دې هيلو او موخو نقشه بايد په ناممکنه بڼه ونه ليکل شي، بلکې د مديريت او لاسرسي وړتيا ولري او د ورځنيو کارونو د خنډ سبب نه شي.

د برنامې جوړولو يوه اغېزه چې ما کشف کړې ده، دا ده چې پر ذهن باندې ډېر مثبت اغېز کوي. اجازه راکړئ چې په دې ډول يې واضح کړم: ډېر کم شيان شته چې کولای شو په خپل ذهن کې يې په ښه توګه ترتيب او برنامه ريزي کړو، د کاغذ پر مخ يې وليکو او هغه ته د رسېدو لپاره پرې تمرکز وکړو. دا کړنه ستاسو پوهه لوړوي، څو پوه شى چې اړينې کړنې کومې دي. له غوره پوهې سره تاسو غوره ټاکنه کوئ او لکه څنګه چې ستاسو ټاکنه ښه او غوره ده، هرو مرو به غوره پايلې هم لاسته راوړى.

نـو ځانتـه دې ډالـۍ ورکـړه: یـو سـپین کاغـذ را واخلـه، پنسـل دې وتراشـه او خپـل هغـه کارونـه ولیکـه چـې تـا خپـل هغـه کسـب او ژونـد تـه رسـوي، چـې تـه یـې غوښـتونکی یـې. دا کـار لـه هغـه نـه ډېـر اسـانه دی چې ته یې فکر کوې. او غوره پایلې به یې تا حیران کړي.

---

**ځانته دې ډالۍ ورکړه: یو سپین کاغذ را واخله، پنسل دې وتراشه او خپل هغه کارونه ولیکه چې تا خپل هغه کسب او ژوند ته رسوي، چې ته یې غوښتونکی یې.**

---

## ۷۰. ویې غواړه چې ورته ورسېږې

که چېرې هڅه ونه کړې، هېڅکله به پوه نه شې. د هغه څه په غوښتلو کې ډېر قوت نغښتی دی چې ته یې غواړې. موږ ډېر کله د خپلو دروني ببځایه غوښتنو له امله، عظمت او لویوالي ته د رسېدو څخه وروسته پاتې کېږو. موږ د خپلو دروني تصوراتو او خیالونو له امله حقیر پاتې کېږو، په داسې حال کې چې زموږ دا تصورات او غوښتنې له دروغو پرته بل څه نه دي.

د غوره خلکو په منځ کې ځلېدونکي کسان هغه دي چې له شان او شوکت څخه ډک ژوند لري او هغوی چې د اهمیت وړ دي، نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کوي. دوی دې پایلې ته رسېدلي دي چې خپل غوره عادتونه باید وتراشو تر څو وځلېږي. څومره چې ډېر دا عمل ترسره کړئ، هغومره اسانه کېږي. (د ژوند د بل هر مهارت په څېر.) دا خلک هغه مهارتونه او مرستې غواړي چې د کړنو لپاره یې ګټورې او اغېزمنې دي. هغه ملاتړ او مرسته غواړي چې د کورنیو کارونو، کسب او بریالیتوب لپاره یې ګټور دي. دا چې دغه خلک ډېر څه غواړي، نو ډېر څه لاسته راوړي.

(بریالیتوب تل د اعدادو یوه لوبه ده.)

څـو چـې د یـو کـار د عمـلي کېـدو غوښـتنه ونـه شي، هېڅکلـه نـه ترسره کېږي. څـو پـورې چـې ماشـوم ونـه ژاړي مـور يـې شـيدې نـه ورکوي. هېڅوک د بل چا فکر نـه لـولي. تاسـو بايـد پـوه شـی چـې څـه ستاسـو لپـاره ارزښـت لـري، او کـه د دې شي غوښـتنه پـه ادب سره وکړئ، نو هرو مرو به د هو ځواب به ترلاسه کړئ.

---

**د غوره خلکو په منځ کې ځلېدونکي کسان هغه دي چې له شان او شوکت څخه ډک ژوند لري او هغوی چې د اهميت وړ دي، نه سترې کېدونکې هلې ځلې کوي.**

---

# ۷۱. نوښتګر اوسه

بشر- د کنټرول تږی دی، هېڅ درملنه هم نه لري. دا پاتې شوی راز له همغه ځایه را پیل شوی دی، کله چې بشر- په غارونو کې ژوند کاوه. موږ باور ته اړتیا لرو او په نشتون کې یې د اسوده ګی احساس نه کوو. مخو رهبري تېوله د نامساعدو او ناوړه شرایطو سره د بلدتیا په مانا ده. هغه لوري ته منډې وهل او له هغه پېښو سره مخامخ کېدل دي چې موږ له وېرې سره لاس او ګرېوان کوي، نه له هغوی څخه تېښته. رهبري یعنې د نوو او تازه څیزونو تجربه.

ډېره اسانه ده څو هره ورځ یوازې یو ډول خواړه وخورو، خو که نوې غذاوې تجربه نه کړئ، کېدای شي د دې موکه پیدا نه کړئ څو هغه خواړه کشف کړئ چې ستاسو خوښېږي او مینه ورسره لري. دا ډېره اسانه ده چې زموږ ناسته ولاړه، خبرې اترې او ژوند کول، له داسې کسانو سره وي چې تل ورسره په اړیکه کې یو. که د اړیکو دا دایره پراخه کړو، کېدای شي چې له دې نه لا ډېر صمیمي ملګري او دوستان پیدا کړو. دا هم ډېره اسانه ده چې په خپل کسب کې هره ورځ یوازې په یوه بڼه او له نوښت پرته پر مخ لاړ شو، خو که چېرته نوې لارې تجربه نه کړو، کېدای شي د

داسې کارونو او کسبونو موکې له لاسه ورکړو چې موږ تکامل او پر ځان باور ته رسوي او زموږ کار ته نوی رنګ ورکوي.

نو له تاسو څخه غوښتنه کوم چې د نوښتونو او نوو لارو په رامنځته کولو سره ځانته د انرژۍ او لا ډېرو لاسته راوړنو لارې پرانیزئ. که د تل لپاره باخ (د اتلسمې پېړۍ یو موسیقي پېژندونکی دی) ته غوږ یاست، کله هم باجو (یو الماني موسیقي پېژندونکی دی) ته غوږ شی. که د تل لپاره غوښه او کچالو خوری، کله هم مالېزیایي خواړه تجربه کړئ. که هر تل فورچون(د مالي چارو په اړه یوه مجله ده) لولی، نو کله کله ډوول(د طراحۍ په اړه یوه مجله ده) هغه هم ولولئ. نړۍ ډېره لویه او د پام وړه ده او کولای شی چې غېږ ترې را چاپېره کړئ.

---

**که لپاره باخ (د اتلسمې پېړۍ یو موسیقي پېژندونکی دی) ته غوږ یاست، نو کله هم باجو (یو الماني موسیقي پېژندونکی دی) ته غوږ شئ. که هر وخت غوښه او کچالو خورئ، کله هم مالېزیایي خواړه تجربه کړئ. که تېول وخت فورچون(د مالي چارو په اړه یوه مجله ده) لولئ، نو کله ډوول(د طراحۍ په اړه یوه مجله ده) هم ولولئ.**

---

# ۷۲. پر ځان مسلط او بر لاسي کېدل

څومره ښکلې کليمې: پرځان مسلط او برلاسي کېدل. دا کليمې يو الهام بښونکی اغېز لري، هيله بښونکې دي. ستونزې ننګوي، تحريکوي مو او خپلو غوره امکاناتو او سهولتونو ته مو ور پام کوي.

د ژوند ډالۍ له يوه لوی مسوليت سره يو ځای ده. موږ هر يو بايد هره ورځ په نړۍ کې نوی ګام کېږدو او په ښه بڼه ژوند وکړو. هو، ژوند تل عادلانه نه وي، موږ تل د بهانه لټوونکو پېرودونکو، بد اخلاقه پلورونکو او غوسه ناکه موټر چلوونکو سره په اړيکه کې يو. له ستونزو او سختيو سره مخ کېږو، د يوازېتوب احساس کوو او يا هم د ښه توب او غوره والي لپاره له هڅو لاس اخلو. دا زموږ د ژوند يوه برخه ده، خو له دې سره سره، ستا په ژوند کې يو ښايسته څه شته څو ستا ژوند ته ځلا ورکړي، له ټولو زنځيرونو او خنډونو دې خلاص کړي څو په خپل ځان برلاسی شې او تسلط پيدا کړې.

نن خپل ژوند ته ژمن شه، چې مسير دې بدلون وکړي، د تل لپاره. نن ورځ دې موضوع ته ځانګړې کړه چې څنګه کولای شې، پر ځان تسلط پيدا کړې. د ذهنيت په اړه دې فکر وکړه، خپل

خالص ارزښتونه او ړتیاوې دې وسنجوه او وګوره چې باورونه دې څه دي. (ځنګه کولای شې چې یو شخصیت شې او که پوه نه شوې څه ډول کس به وې؟) خپلې وېرې وپېژنه. خپل شخصي نبوغ او بشري پوټنشیل ته دې پام وکړه. زده کړه چې د خپل تېر وخت د احساساتو بار دې له اوږو لرې کړې. له منفي فکرونو لاس واخله. (جبران خلیل جبران، په خپلو اثارو کې لیکي: «شک هغه درد دی چې دومره د یوازېتوب احساس کوي چې په دې نه پوهېږي، ایمان یې غبرګونی ورور دی.» موږ هر یو د هغه څه نه ډېرې تاکنې لرو چې اوس یې وینو. کله چې په جرئت سره عمل کوو، هغه دروازې چې موږ یې له شتون څخه خبر نه درلود، ورو ورو خلاصېږي.)

ډېر څه ولولئ، ډېر څه زده کړئ. د خپلې روغتیا د ساتلو لپاره کوښښ وکړئ. (روغتیا د هغه کسانو لپاره ډېر ارزښت لري، چې له لاسه یې ورکړې ده.) کوښښ وکړه چې په کار کې دې غوره و اوسې. په خپل کسب او حرفه کې دومره عالي او غوره اوسه چې هغه شرکت چې ته پکې دنده ترسره کوې، له تا پرته د عاجزۍ او کمۍ احساس وکړي. هغه دوستانه شخص اوسه چې تر اوسه یې

پېژني. تل مهربانه اوسه او هڅه وکړه څو نور درک کړې. له خلکو سره ښه اوسه، ښه اوسه.

---

**په خپل کسب او مسلک کې دې دومره عالي او غوره شه څو هغه شرکت چې ته پکې دنده ترسره کوې، له تا پرته د عاجزۍ او کمۍ احساس وکړي.**

---

## ۷۳. د ځان لپاره ځانګړی اوسه

که هره ورځ زما وېب پاڼې ته لاړ شې، پوه به شې چې زه د ایان شراګر د هوټلونو څومره مینوال یم. د لومړي ځل لپاره شاوخوا لس کاله مخکې د دې هوټلونو له ډلې څخه په یوه کې پاتې شوم. کله چې د نیویارک ښار پارامونټ ته د خپل کتاب (هغه راهب چې خپل فراري موټر یې خرڅ کړ) په اړه د خپرونې لپاره تللی وم، په خپل نوي کتاب (د لویوالي لارښود ۱) کې مې د سنټ مارټین لین هوټل په اړه ځینې مطالب ولیکل( تر اوسه هم دا هوټل په نړۍ کې زما د خوښې هوټل دی) ولې د ایان شراګر له هوټلونو سره مینه لرم؟ ځکه، کله یې چې کارونه نوي پیل کړي وو، دوی د نورو په څېر نه و ( نن ورځ ډېری ښکلي او لوکس هوټلونه د شراګر له هوټلونو څخه تقلید کوي.) د شراګر هوټلونه په په ریښتیا هم ښکلي دي. دا نه یوازې هوټلونه وو، بلکې د پرمختللو هنرونو یوه ګالري هم وه. دوی د تقلید پر ځای د نورو لپاره د تقلید منبع او سرمشق و. کټ مټ لکه د نړۍ د نورو عالي انسانانو او عالي کسبونو په څېر.

زه د بکویټ د یو کتاب د لوستلو په حال کې یم چې نوم یې(د مین پېرودونکي څوک دي) دی، په لاس کې مې کولمبیایي قهوه هم ده. د کار او ژوند په اړه فکر کوم. په دې کتاب کې هغه څه لیکل شوي دي چې ما یې تمه درلوده. بکویټ د شراګر په اړه لیکلي دي: « پربېږده یې چې څلورویشت کسان زما له هوټلونو څخه کرکه ولري، خو که چېرې له پنځه ویشت کسانو څخه یو هم زما له هوټلونو سره مینه ولري، دا زما لپاره بسنه کوي.» یو عالي نظر.

هغه شرکتونه چې هڅه کوي څو د هر چا لپاره هرڅه و اوسي، په پایله کې د هېچا لپاره هېڅ هم نشي- کېدای. په خپلو کارونو کې باید ډېره هڅه وکړې، هغه هم په مینه او احساس سره، څو نړیوالو ستندردونو ته لاره پیدا کړې. یا دا او یا هم هېڅ.

---

**هغه شرکتونه چې هڅه کوي د هر چا لپاره هرڅه و اوسي، په پایله کې د هېچا لپاره هېڅ هم نشي کېدای.**

---

## ۷۴. خپل عظمت او لویوالی وپېژنه

نن سهار مې د يو امريکايي زنداني يو ليک ولوسته چې په پنسل ليکل شوی و. هغه ليکلي و چې د «هغه راهب چې خپل فراري موټر يې خرڅ کړ» کتاب مې ژوند بدل کړ. کتاب ورسره دا مرسته کړې وه څو زده کړي چې د دې لپاره خلق شوی څو بدلونونه رامنځته کړي او له خپل پوټنشيل څخه ګټه واخلي. دا يې له ياده وتلي وو چې څنګه کس به تري جوړېږي، څکه ژوند ورته ډېرې صدمې رسولې وې. ډېرې صدمې.

دا خبره تل اورم چې خلک له هغه چا نه مننه کوي چې دا خبره ورته کوي «ته کولای شې خپل عظمت او لويوالی لاسته راوړې، په نړۍ کې هېڅوک بې ګټې نه دي پيدا شوي او د هر چا ژوند خپل ځانګړی مقصد او موخه لري.» په ماشومتوب کې په دې حقيقتونو پوهېدو. په همدې خاطر مو خوبونه او هيلې درلودل. د همغه هيلو او خوبونو غوښتونکي وو، څکه خو مو په بې باکۍ سره ژوند کاوه. په مينه مو ژوند وکړ او د لويانو په عمر ور ګډ شوو، ورو ورو له خپل اصلي طبيعت څخه لرې شوو او پوهه مو ورکه کړه.

ډېرى هغـه ليكونـه چـې د «د لويـوالي لاربښـود» كتـاب د لوسـتونكو لخـوا ماتـه را اسـتول كېـږي، د دې موضـوع پـه اړه خـبرې كـوي چـې، ژوند عادت لـري څـو مـوږ د هـر څـه هېرولـو تـه اړ كـړي او يـوازې پـه يـو مسير او يـوه بڼـه ژونـد وكـړو. لـه مـوږ نـه ډېـرى خـو بيـا دا وړانديزونـه ډېـر زر منــي، خپلـې پلټنــې دروي، لــه دې نــه وروســته يــې موخــه د عظمـت او لويـوالي لاسـته راوړل نـه وي، حقيقـت ويلـو تـه د پـاى ټكـى ږدي. هغـه ډالـۍ چـې مـوږ تـه راكـړل شـوې ده او نـوم يـې ژونـد دى، په كمه سترګه ورتـه ګـورو، پـه داسـې حـال كـې چـې مـوږ د غـوره ډاليـو مسـتحق يـو. معمـولي انسـانان كـولاى شي چـې لـوى او د پـام وړ كارونـه تـرسره كـړي. يـوازې دا چـې دې موضـوع تـه پـام وكـړي. رښـتيا دوى څـوك دي او كـولاى شي چـې پـه غـوره او عـالي بڼـه ژونـد وكړي؟

---

**خلک له هغه چا مننه کوي چې دا خبره ورته کوي «ته کولای شې خپل عظمت او لويوالی تر لاسه کړې، په نړۍ کې هېڅوک بې ګټې نه دي پيدا شوي او د هر چا ژوند خپل ځانګړی مقصد او موخه لري.»**

---

## ۷۵. د کولډ پلې موسیقۍ د ګروپ په خبر اوسه

د کولډ پلې کنسرت لپاره ټورنټو ته تللی وم. د دوو ساعتونو لپاره یې سټډیوم د خپلو سازونو او موسیقۍ په واسطه په لړزه را وستی و. شاوخوا شل زره کسان په دې کنسرت کې موجود و څو دا ګروپ وهڅوي. ډېر مې خوښ شو. هغه کسان چې د موسیقۍ په اړه پوهېږي، وایي چې کولډ پلې همغه دوهم یوټو (د پاپ موسیقۍ یو مشهور ګروپ) دی. د موسیقۍ د دې ګروپ په لیدو سره مې د رهبرۍ یو لوی درس زده کړ او هیله لرم چې تاسو هم په راتلونکو مراحلو کې عظمت ته د رسېدو په لاره کې له دې درس نه ګټه واخلئ.

دلته څلور فکرونه په وضاحت سره لیدل کېږي. لومړی: د کنسرت له پیل نه تر پایه دا ګروپ په دې پوهېده چې ولې دلته راغلي دي. د حاضرینو لپاره د یوې غوره تجربې د پرېښودلو په خاطر یې ډېرې ښکلې رڼا ګانې چمتو کړې وې، د صحنې ډېکوریشن یې ډېر عالي و، د موسیقۍ د اجرا کولو ځای یې هم ډېر په زړه پورې جوړ کړی و. دویم: له اورېدونکو او لیدونکو سره یې داسې اړیکه ټینګه کړې وه لکه موږ هم چې د کنسرت د اجرا کوونکو له ډلې

څخه و، لـه هغـوی سره مـو يـو ځـای خنـدل او پسـې خنـدل. دريـم: دوی خپلـو حـاضرينو تـه مينـه ورکولـه. (څـو داسـې شرکتونـه پېژنـې چې خپلـو پېرودونکـو تـه دا ډول مينـه ورکـړي چې کلـه هـم لـه دوی سره معاملـه کـوي، پـه پېردودنکـو کـې د ځـانګړيتوب او خـاص والي احسـاس را پيـدا شي؟ مګـر کولـډ پلـې دا کـار پـه ډېـره اسانۍ تـرسره کـاوه.) دوی لـه مـوږ نـه ځکـه منننـه کولـه چـې مـوږ يـې د بريـا لامـل ګرځېـدلي و. دوی د زړه لـه تلـه لـه حـاضرينو څخـه قـدرداني وکـړه ځکـه چـې د دوی د حوصـلې او بردبـارۍ سـبب شـوي و. (پـه حوصـله او بردبـارۍ سره کـولای شـو چـې لـه خلکـو سره غـوره اړيکـې ټينګـې کـړو.) څلـورم: دوی د خپـل هـنر پـه اجـرا کولـو کـې ډېـر دقيـق و، غـوره او عالي ترانې او شعرونه يې لوستل. څومره عالي ادواينه.

هو، کولډ پلې هغـه شـپه لـه هغـه انـدازې چـې امکـان يـې درلـود، ډېـره غـوره ادواينــه تـرسره کـړه. فکـر وکـړئ څـه بـه شـوي وي؟ د همـدې څلـورو موضـوعاتو پـه خـاطر زه د دې ګـروپ مينـوال يـم. تاسـو تـه يـو وړانـديز لـرم: د خپلـو پېرودونکـو او کـاري بـازار لپـاره د کولـډ پلـې پـه شـان و اوسـه. د ځـان لپـاره مينـوال پيـدا کـړه، هغـوی خـوښ وسـاته او هر هغـه څـه دې چـې پـه وس او تـوان کـې وي تـرسره يـې کـړه څـو دې پېرودونکي تلپاتې او خوښ و اوسي.

**مینوال پیدا کړه، هغوی خوښ وساته، د هغوی د خوښۍ لپاره هغه څه تر سره کوه چې په وس او توان کې دې وي.**

## ۷٦. له ډېر خوب کولو ډډه وکړئ

پوهېږم چې دا بحث ډېر مېنوال نه لري مګر اړینه ده چې څو بیان شي. ډېری خلک له اړتیا نه زیات خوب کوي. دا چې دوی ډېر خوب کوي، نو خلک ورته د خوب ګوډی وايي. او دا د دې لامل کېږي څو د خپل ژوند ډېره غوره او زرین ساعتونه له لاسه ورکړي. دوی د ډېره ګران بیه ډالیو د لاسته راوړلو موقعیتونه له لاسه ورکوي او د خوب له تخت سره په جګړه کې هم پاتې راغلي دي. دوی د همدې عادت له امله د عظمت او لویوالي موکه یوازې د خوب د کلمې په تکرار او عملي کولو له لاسه ورکړې ده.

په یاد مو وي چې خوب، د خوب زېږدنده ده، هر څومره چې ډېر خوب وکړئ، هغومره ورته ډېره اړتیا پیدا کوئ. ایا کله مو د دې احساس کړئ، هر څومره چې ډېر ویده شئ، هغومره تنبل او خوبوړي وی؟ حیرانوونکې ده! که نه؟ خو دا یو حقیقت دی.

هو، پوهېږم چې د څواک او روغتیا د بیا نوي کولو لپاره خوب ته اړتیا لرو او خوب موږ ته یو ځل بیا انرژي راکوي. زما وېره له حد نه د ډېر خوب کولو څخه ده، هغه خوب چې عالي انسانان له پرمختګ څخه شاته کوي. هغه خوب چې د ژوند پوټنشیل مو را

کموي، هغه خوب چې له هغه خلکو نه د ژوند موکې اخلي چې د عظمت او لویوالي مستحق دي. کېدای شي چې موږ هم له دې پېښو سره مخ شو. هغه هم یوازې د ډېر خوب سره د علاقې او لېوالتیا له امله.

ډېر کارونه مو په مخ کې پراته دي چې باید تر سره یې کړو، د نوښت او کشف لپاره ډېر او غوره ځایونه شته. په ډېر خوب سره له دې هر څه محرومېږو. ژوند د ژوندیو لپاره دی، دا خبره باید تکرار کړم چې ژوند د ژوندیو لپاره دی. موږ او تاسو ته نن یوه ډالۍ راکړل شوې ده، هغه دا چې په خپل ژوند کې اغېزمن واقع شو، له وړتیاوو مو ګټه واخلو او په څنګ کې ورسره عالي او غوره شېبې ولرو. دې ډالۍ ته باید په دواړو لاسونو غېږه ورکړو. لکه څنګه چې بنجامین فرانکلین ویلي دي: «کله چې مړ شوې، د خوب لپاره به ډېر وخت پیدا کړې.» زه تل د نوموړي ستاینه کوم.

زما وېره له حده د زيات خوب کولو څخه ده، هغه خوب چې عالي انسانان له پرمختګ څخه شاته کوي، هغه خوب چې د وجود پوټېنشيل او زخيروي انرژي مو راکموي او د ژوند غوره موکې مو له لاسه وباسي.

## ۷۷. په عمودي ډول حرکت وکړئ

په ایټالیا کې یم، له خپلې کورنۍ سره په رخصتۍ راغلی یم. نوی کتاب هم لیکم، کار مې په ښه توګه پر مخ ځي. د استراحت او څواک نوي کولو په حال کې یم. تر اوسه مې په ټول ژوند کې دومره مکروني نه وو خوړلي، فکر کوم چې دا څو ورځې مې له نږدې هوټل څخه ډېر ملاتړ کړی دی. (کېدای شي راتلونکې پروژه مې د غذايي رژیم په اړه د یو کتاب لیکل وي.)

پرون مازدیګر ما او اولادونو مې یوه کوچنۍ کښتۍ اجاره کړه او د امالفي سواحلو ته لاړو. ساحل ته نږدې وو، له خپل ځای څخه ډېر لرې نه وو تللي. دې موضوع زه په فکر کې ډوب کړم، د کرېستېف کولمب د حیرانوونکي جسارت په اړه مې فکر وکړ.

له نوموړي مخکې به هر کاشف له ساحل نه د لېرې کېدو څخه وېره درلوده. ټول یوازې په پېژندل شوو ځایونو کې ګرځېدل. دوی د امن غوښتونکي وو، جرئت يې نه درلود. مګر کولمب بل ډول کار وکړ، هغه مېړانه درلوده، مستقیم بحر ته ور ګډ شو، له ساحل نه په عمودي ډول تېر شو او یوه نوې نړۍ يې کشف کړه. افرین دې وي پرې.

البته ما هم غوښتل چې له خپلو اولادونو سره په امن کې و اوسم. یوازې غواړم چې یو ټکی بیان کړم: لویوالی او عظمت د یو رهبر په توګه په دې مانا دی چې د خپل امن او ارامۍ له احاطې څخه بهر پل کېږدې.

ځینې وختونه باید پېژندل شوي ځایونه پرېږدې، نا پېژندل شوو ځایونو ته سفر وکړې او نوې لارې تجربه کړې، نوي فکرونه ولرې او په عمودي ډول هغه ځایونو ته لاړ شې چې اوسېدونکي يې یوازې په همغه سواحلو پورې نښتي دي او خپل امن او ارامي نه خوشې کوي. هو، انسان په طبیعي ډول له لویو بدلونونو، ودې او پرمختګ څخه وېرېږي. خو لکه څنګه چې ښاغلي چستر فیلډ ویلي دي: « که څوک ونه غواړي چې خپل ساحل او پېژندل شوی ځای پرېږدي، البته چې د نویو اقیانوسونو او لویو وچو کشفول ناشوني دي.»

---

**که څوک ونه غواړي چې خپل ساحل پرېږدي او لرې لاړ شي، البته چې د نویو اقیانوسونو او لویو وچو کشفول ناشونی کار دی.**

---

## ۷۸. له ژونده، ژوند جوړ کړه

د یکشنبې سهار ډېر ارام ښوونکی دی، کله چې دا برخه لیکم د «کافه دل مار» سندرې ته غوږ یم. د یو ګیلاس خوندورې قهوې له څښلو څخه هم خوند اخلم. اولادونه مې د لوستلو په حال کې دي او زه په ارامۍ سره قدم وهم. دا شېبې مې ډېرې خوښېږي.

اوس اوس داسې یوه پېښه وشوه چې زه یې ډېر وخندولم، غواړم چې تاسو هم پرې پوه کړم: ما او بیانکا لوبه کوله. که واضح و وایم د شخصیتونو د بدلولو لوبه. خپل ځایونه مو یو له بل سره تبدیل کړل. هغه زه وم او زه هغه. زما د لیکلو د مېز تر شا کېناسته او لیکل یې پیل کړل. زما د خبرو کولو تقلید یې کاوه، ما هم پرله پسې د سپیانو، پیشوګانو، د موسیقۍ د ګروپونو او د نویو سندرو په اړه خبرې کولې. وروسته له څو دقیقو تقلید څخه یې راته وویل: «زه نور نه غواړم چې ته، و اوسم. پلاره، ډېره ستونزمنه ده، غواړم یوازې خپله اوسم.» څومره ښه!

په نړۍ کې له دې پرته بل ښه شی څه دي چې ته په خپله اوسې او له ځان سره مینه ولرې؟ موږ ډېری انسانان د نورو خلکو په قالبونو کې ژوند کوو او د نېکمرغۍ موکې له لاسه ورکوو. تکامل

هغـه وخـت لاسـته راځـي چـې د خپـل ځـان لـه حقیقـت سره ژونـد وکړې او لـه خپلو ارزښـتونو څخـه ګټـه واخلـې. پـه خپلـو هیلـو او موخـو پسـې وګرځــه، انګلیسي- پـوه، شکسـپیر ویـلي دي: «لــه ځــان سره صـادق اوسـه.» کلـه چـې مـرګ تـه نـږدې شـوې او پـه دې پـوه شـوې چـې هېڅکلـه دې سـم ژونـد نـه دی کـړی، بیـا دا نصـیحتونه ګټـه نـه درته کـوي. یـو عـالي او غـوره ژونـد لـه صـادقانه او مخلصـانه ژونـد څخـه سرچینه اخلي، په رښتیا هم.

---

**یو عالي او غوره ژوند له صادقانه او مخلصانه ژوند څخه سرچینه اخلي.**

---

## ۷۹. بښنه وکړه، څو وبښل شې

کله مې چې په سړک قدم واه، وامې ورېدل چې يو کس په لوړ اواز دا جمله تکراروي څو هغه خلک چې له دې ځايه تېرېږي، د ده غږ واوري: ايا نن دې له خپل ځان پرته له نورو سره مرسته کړې ده؟ غوښتل يې چې پيسې ټولې کړي. هغه دليل چې ده د خپل ځان لپاره درلود، زه يې د بښنې په فکر کې واچولم. بايد بښنه وکړې څو بښنه درته وشي. په بښنې سره کولای شې چې هرڅه لاس ته راوړې.

ملاتړ وکړه څو ملاتړ دې وشي. ستاينه وکړه څو وستايل شې. ډېر درناوی وکړه څو عکس العمل يې وګورې، ډېره مينه وکړه څو ډېره مينه درسره وشي.

يو پياوړی فکر: که هره ورځ د دې لامل شوې چې پنځه کسه خپل ځان غوره او عالي و وينې، د يو کال په اوږدو کې به د شاوخوا دوه زره کسانو ژوند ته ارتقا ورکړې. دې کړنې ته دوام ورکړه، له يوې لسيزې وروسته به وګورې چې په مثبت ډول دې د شل زره کسانو پر ژوند خپل اغېز پرې اېښی دی. د هغه کسانو

تعداد په پام کې ونیسه چې اړیکه دې ورسره درلودلې او په ژوند کې یې اغېزمن واقع شوی یې، په چټکۍ سره به دې پایلې ته ورسېږې چې «ستا ورځني کوچني او الهام بښونکي نېک کارونه» د ټول عمر لپاره له زرګونو کسانو سره د مرستې لامل شوي دي.

ښه وکړه څو ښه درته وشي؛ یوه غوره بدله. ښه ډېره، ډېره اسانه ده. (لکه څنګه چې ټول غوره او عالي فکرونه یو اسان حقیقت دی.) په حقیقت کې د رهبرۍ یوه مانا، خلکو ته خدمت کول دي. له نورو سره مرسته وکړه څو عظمت او لویوالي ته ورسېږې، په بدل کې به هغوی له تاسره مرسته وکړي څو مطلوبې پایلې لاسته راوړې.

---

**باید ښېګنه وکړې څو ښېګنه درته وشي، په ښېګنې سره کولای شې چې هرڅه لاسته راوړې.**

---

## ۸۰. د (جې. کې) په څېر و اوسه

د راتلونکي په اړه د فکر لرونکو خلکو ذاتي ځانګړنې په دې خاصیت سره خلاصه کېږي چې، دوی هغه څه ویني چې نور خلک یې نه ویني. د الماني فیلسوف، ارتور شوپنهایر هغه خبره را په یادېږي چې ویلي یې دي: «هغه کسان چې وړتیا لري، هغه موخې ته رسېږي چې نور کسان نه شي ورته رسېدای. نابغه کسان هغه هیلو او موخو ته رسېږي چې نور نشي- ور رسېدلای.» دا خبره د هغه خبرې رمز په څېر ده چې یوازې ویونکی پرې پوهېږي. لوی خلک خپلې هیلې، فرصتونه او لېوالتیا په خپلو تصوراتو کې په ښکاره توګه ویني او خپلې ورځې دې ځانګړتیاوو ته په ژوند ورکولو سره تېروي. که څه هم عادي او نا پوهه خلک د دې کسانو په اړه وایې چې دوی یوازې خپل وخت تېروي. نه، دوی خپل وخت نه تېروي، تاسو د ګاندي، اډیسن، ډیسني او (جې کې) په اړه فکر وکړئ.

جې، کې رولېنګ هغه یوازینۍ مور وه چې د کورنیو لګښتونو د پوره کولو لپاره یې ډېرې سختۍ ګاللې. په داسې حال کې چې په رېل ګاډي کې په څلور ساعته سفر روانه وه، ناڅاپه یې په ذهن

کې «د مسترد شوي جادوگر ځوان» په اړه د یو کتاب لیکل ور ورگرځېدل. هغې په خپله وېب پاڼه کې لیکلي، خوشاله وه چې په دې سفر کې قلم ورسره نه و، ځکه چې د دې خارق العاده افکارو لیکل یې د دې لامل کېدل څو د خپل فکرونو رېښه له لاسه ورکړي. د هري پاټر د کتاب تر لیکلو وروسته یې نومړی کتاب څو خپرندویه ټولنو ته ولېږه. دېرو یې د کتاب له چاپولو څخه انکار وکړ، یوازې له یوه کس پرته. دا هغه ټکی دی چې زه یې د راتلونکي لیدونکو په اړه بیانوم. دا کسان هغه موکې او فرصتونه ویني چې د دوی شاوخوا ډېری کسان پرې نه پوهېږي. فکر وکړئ چې یوه خپرندویه ټولنه د هري پاټر د کتاب له چاپولو څخه په دې خاطر انکار کوي چې وبه نه پلورل شي او د داسې یو کتاب د چاپ موکه له لاسه ورکوي چې د بشر- په تاریخ کې تر ټولو ډېر پلورل شوی کتاب دی. هو، د هري پاټر د داستانونو کتاب.

د راتلونکي په اړه فکر کول او د ژوند د لوړو پوړیو په لور گام اېښودل په دې مانا دی چې تاسو به هرو مرو له داسې کسانو سره سر و کار لرئ چې تاسو تر پوښتنې لاندې راولي. دوی به هلته ونه رسېږي چېرته چې ته ځې. ته به دوی ته د یو ناپوهه، لار

ورکـي او وخـت ضـايع کـوونکي کـس پـه توگـه ښـکارېږي. دوی بـه پـه تـا پـوري وخانـدي. څـومره ښـه، د دې لپـاره چـې دوی سـتا پـه اړه متفاوت فکر لـري، لـه دوی نـه مننـه وکـړه او هغـه خپـل مـزل تـه د هغـه ځـای پـه لـوري چـې غـواړې ور ورسـېږې، دوام ورکـړه. دا بـه سـتا لپـاره يـوه غـوره نـړۍ اوسي. لکـه څنگـه چـې مايـا آنجلـو وايـي: «کـه ښـه قسـمت ولـرې، يـو خيـال او فکـر پـه يـوازې توگـه کـولای شي چـې پـه مېليونونو واقعيتونو ته بدلون ورکړي.»

---

**دا هغه ټکی دی چې زه يې د راټلونکو ليدونکو په اړه بيانوم. دا کسان هغه موکې او فرصتونهويني چې د دوی شاوخوا ډېری کسان پرې نه پوهېږي. فکر وکړئ چې يوه خپرندويه ټولنه د هري پاټر د کتاب له چاپولو څخه له دې کبله انکار کوي چې وبه نه پلورل شي.**

---

## ۸۱. بې زحمته راحت نشته

کله چې په دوبۍ کې د ځوانو ریسانو ټولنې ته د وینا لپاره ورغلی وم، یوه مېرمن مې خواته راغله او ویې ویل: «ښاغلی رابین، زه ستاسو د کتاب (هغه راهب چې خپل فراري موټر یې خرڅ کړ) د لوستلو مینواله یم، ته د کتاب د تمرینونو ترسره کول په ډېره ساده بڼه څرګندوې، خو زما د ژوند ښه کول ډېر ستونزمن دي.» عجیبه ده! زه یې په فکر کې ډوب کړم؛ زه په شدت سره د دې موضوع په اړه خپل نظر څرګندوم.

موږ په داسې نړۍ کې ژوند کوو چې د راحت او ارام غوښتلو په واسطه احاطه شوې ده، موږ غواړو چې ډېر ښکلي ښکاره شو او یو مناسب اندام ولرو، پرته له دې چې د دې ځانګړتیاوو د ترلاسه کولو لپاره ورزش او اقدام وکړو. موږ غواړو چې په خپل کسب او مسلک کې بریالي اوسو، خو تل په دې فکر کې یو چې څنګه کولای شو له سخت کوښښ او ډیسیپلین پرته دې هیلې ته ورسېږو. (بریالي مدیران په حیرانوونکې توګه له ډیسیپلین څخه ګټه اخلي همدارنګه لوی شرکتونه هم دا ډول کار کوي.) موږ د خوند ډک او له وېرې څخه د پرته ژوند غوښتونکي یو، ډېر کله د

هغـه غـوره کـارونو د تـرسره کولـو څخـه ډېره کـوو چـې مـوږ دې غوښـتنې تـه رسـوي. (دا غـوره کارونـه پـه لانـدې ډول دي: وختـي پاڅېـدل، پلټنـې او څېړنـې کـول، د موخـو ټاکـل او ډېـر لوسـتل. دا هغـه کړنـې دي چـې کـولای شي مـوږ د خپلـو موخـو پـر لـور و هڅـوي. هېڅ شـی لـه بيـې پرتـه او وړيـا پـه لاس نـه راځـي، پـه رښـتيا هـم چـې وړيـا سـهارنۍ هـم نشـته. پـه ژونـد کـې نېکمرغـۍ تـه د رسـېدو لپـاره دوه لاملونو؛ ډېـرې هڅـې او ژمنـې تـه اړتيـا لـرو. مـوږ هـر يـو بايـد خپـل ځـانګړې عظمـت او لويـوالي تـه د رسـېدو لپـاره يـوه بيـه پرېکـړو. هـر څومره چې ډېر څـه ورکـړې، هغـومره بـه ډېـر څـه ترلاسـه کـړې. ګټـه پـه تاوان کېږي.

لـه هڅـو او سـخت کـار پرتـه د يـو ښـه کـور، ښـه ژونـد او غـوره ډېسـيپلين غوښـتل د داسـې يـو بـاغ غوښـتل دي چـې هـېڅ شـی هـم پکـې نـه وي کـرل شـوي. د دې لپـاره چـې روغتيـا مـو ښـه وي اړينـه ده چـې د ورځـې پـه اوږدو کـې د ډېـرو چـاکلېټو لـه خـوړو ډډه وکـړو. لـه کوښـښ پرتـه، يـوازې د څـو جـادويي ټـابلېټونو د خوړلـو او دعـا کولـو پـه واسـطه نشـو کـولای چـې غـوره کسـب او کـار تـر لاسـه کـړو. نـو فکـر وکـړئ چـې ايـا ژمنـه او عمـل اړيـن نـه دي؟ همدارنګـه قربـاني ورکـول څنګه؟

یو عالي او غوره ژوند د چانس په نه تر لاسه کېږي، لوی او مشهور ځایونه لکه تاج محل، د چین لوی دېوال او نور، ورځ په ورځ او په پرله پسې توګه جوړ شوي دي. لویې سوداګرۍ په ناڅاپي ډول جوړښت نه مومي. دا نعمتونه د مکرر زحمت، سخت کار او بې پایه هڅو او کوښښونو له امله منځته راغلي او ترلاسه شوي دي. راځئ دا باور چې ښه ژوند له کوښښ او هڅو پرته لاسته راځي، له ذهنه وباسو. ښه وکړه او غوره اوسه څو ښه اعمال او غوره کړنې ستا خواته مخه وکړي. دا یو رېښتینی تضمین دی.

---

**هېڅ شی له بیې پرته او وړیا په لاس نه درځي، په رښتیا هم چې وړیا سهارنۍ هم نه پیدا کېږي. په ژوند کې نېکمرغۍ ته د رسېدو لپاره دوو لاملونو؛ ډېرې هڅې او ژمنې ته اړتیا لرو.**

---

## ۸۲. یا حیران شه یا خواشیني

زموږ انسانانو د اړینو ځانګړتیاوو څخه یوه هم د تاکلو وړتیا ده. د دې تاکنه چې څنګه ژوند وکړو، د دې تاکنه چې څه به کوو او د دې تاکل چې د حالاتو او وضعیت په اړه زموږ نظر څه دی.

د سکي لوبې په خاطر له خپلو اولادونو سره یوه غره ته لاړم. له دې نه یوه ورځ مخکې باران ورېدلی و. دا موضوع کېدای شوای چې زموږ د خلق تنګۍ لامل شوې وای، کولای مو شوای چې شکایت وکړو، کېدای شوای چې ناهیلي شوي وای، مګر د دې پر ځای موږ یوه شېبه فکر وکړ، پرېکړه مو وکړه چې د غوسې، ناهیلۍ او بد خلقۍ پر ځای یوه بله تاکنه وکړو او دا وضعیت د یوې لویې پلټنې او معما د حل په توګه په پام کې ونیسو. د ناراحتۍ پر ځای لاس په کار شوو او د سکي لوبې لپاره مو د باران ضد کوټونه واغوستل. په پوره توګه مو له سکي لوبې څخه خوند واخیست. فکر وکړئ څه به شوي وي؟ یوه خارق العاده د سکي لوبه مو وکړه، واوره نرمه وه او هره خوا ارامه او ښکلې شوې وه. یوه اونۍ وخت نیسي- څو دا موسکا زما له مخ څخه لرې شي. موږ هره ورځ د تاکنې موکه لرو. زموږ تاکنې زموږ راتلونکي ته بڼه

ورکوي. نو خواشین کېږه مه بلکې حیران شه. لکه څنګه چې پاول ټروکس لیکلي دي: «یوازې یو ناپوه کس د بدو رخصتیو لپاره باران ملامتوي.»

---

**موږ هره ورځ د ټاکنې فرصت لرو. زموږ ټاکنې زموږ راتلونکې ته بڼه ورکوي.**

---

## ۸۳. د دېوالونو پرځای پلونه جوړ کړئ

نن مې له يوه غوره شخصيت سره خبرې درلودې؛ له يوه، دوه دېرش کلن کس سره. نوموړی په کاراييب کې لوی شوی دی. دنده يې د دېوالونو جوړول دي او په زړه کې يو لوی فيلسوف دی.

ماته يې وويل: «په دې ورځو کې د خپل ټول ملک خځه دېوال تاووي څو د ځان او ګاونډيانو تر منځ بېلتون راولي، څو خپل ځان محفوظ وساتي، څو خپل خصوصي حريم وساتي، څو يوازېتوب ته وده ورکړي. زه په سنټ وينسنټ کې لوی شوی يم. موږ په خپله کوچنۍ جزيره کې د يوې لويې کورنۍ په څېر وو. ټول کلي به د يوه ماشوم په لويولو او تربيه کولو کې برخه اخيسته. ټولو يو له بل سره خبرې کولې. ټولو يو بل ته ارزښت ورکاوه. موږ هر يو د بل لپاره د هغه د ژوند يوه برخه وو؛ يوه رېښتينې ټولنه.

ټولنه، يوه ښکلې کلمه ده. موږ هر يو يوه رواني اړيکه ورسره لرو. موږ ټول غواړو چې له ټولنې سره اړيکه ولرو څو پوه شو چې د دې کُل يو جز يو. ځکه چې موږ ته ارامي راکوي او زموږ لپاره امن او رضايت رامنځته کوي.

شرکتونـه خپلـې ټـولنيزې اړيکـې پراخـوي او خپلـې فـابريکې يـا دفترونـه پـه داسـې ځـايونو کـې جـوړوي څـو کـارکوونکي يـې دومـره د امـن او ارامـۍ احسـاس وکـړي چـې بلاخـره خپـل اصـلي ذات تـه ورسـېږي. غـوره کـورنۍ هـم دا کړنـه تـرسره کـوي. يـو بـل تـه درنـاوی د داسـې بـا ثمـره شـېبو رامنځتـه کـول دي چـې مـوږ ټـول پکـې برخـه لرو. کېدای شي چـې موږ هـم لـه خپـل ځانـه د دېوالونـو چاپېره کـول پرېـږدو او د ټـولنيزو پلونـو پـه جوړولـو سره خپـل ځانتـه د امـن، ارامـۍ او سوکالۍ حقيقي خوښي وروښو.

---

**موږ ټول غواړو چې له ټولنې سره اړيکه ولرو، څو پوه شو چې د دې کُل يو جز يو. څکه چې موږ ته ارامي راکوي او زموږ لپاره امن او رضايت رامنځته کوي.**

---

# ۸۴. چتکه ماتې

یـو کامـل وضـاحت: زه لـومړنی کـس نـه یـم چـې لـه دې عبـارت« پـه چتکـۍ سره مـاتې وخـوره» څخـه ګټـه اخلـم مګـر پـه رښـتیا چـې مینـه ورسره لـرم. د کوکـاکولا شرکـت مـدیر پـه کلنـۍ ناسـته کـې خپلـو ګـډونوالو تـه وویـل چـې شرکـت د یـو لـړ بـدلونونو او تغیراتـو پـه حـال کـې دی او پـه یـو رسـمي سـند ( د پراختیـا لپـاره بیانـه) کـې یـې هـر څـه واضـح کـړي دي. هغـې روښـانه کـړه چـې د دې سـند لګښـتونه د بـازار مونـدنې او شـهرت لپـاره تـر څلور سـوه میلیونـه ډالـره پـورې دي. (دا جملـه ډېـره د ارزښـت وړه ده.) ویـې ویـل: «تاسـو بـه د یـوې کـوچنۍ مـاتې شـاهد وی، ځکـه چـې مـوږ اوس نـوی پـړاو پیلـوو نـو باید چې د دې ډول ماتو او تاوانونو زغم ولرو.»

د رهـبرۍ پـه اړه پـه هغـه وینـا کـې چـې څـه مـوده مخکـې مـې د دوا جـوړونې د یـو شرکـت د پلورونکـو ټـیم تـه کولـه، یـو کـس را نـږدې شـو او ویـې ویـل: «ستاسـو لـه وینـا مـې ډېـر خونـد واخیسـت، پـه ځـانګړې توګـه لـه دې خـبرې څخـه چـې مـاتې، عظمـت تـه د رسـېدو بیـه او قیمـت دی.» زه د دې موضـوع پـه فکـر کـې ډوبېـږم چـې لـه مـوږ نـه ډېـر کسـان لـه مـاتې څخـه د وېـرې لـه املـه هـېڅ هڅـه او کوښـښ نـه

کوي. سنکا، یوناني فیلسوف ویلي دي: «دا چې موږ جرئت نه کوو، لامل یې سخت کار نه دی، بلکې همدا زموږ بې جرئتي ده چې کارونه راته سختوي.» موږ له دې څخه وېرېږو چې که ماتې وخورو، کېدای شي چې ناپوهه ښکاره شو او په پایله کې له پلټنو او زړورتیا لاس اخلو او فرصتونه له لاسه ورکوو. فکر کوو چې ماتې ښه شی نه ده، نه داسې نه ده، ماتې ډېره عالي زده کړه ده.

له ماتې پرته هېڅ بریا نشته. ماتې د پرمختګ یوه برخه ده. لوی شرکتونه او هغه کسان چې لوړو پوړیو ته رسېدلي دي، هماغه دي چې له بل هر چا نه یې ډېرې ماتې خوړلې دي. ماتې د بریا لپاره لازمه ده او هر څومره زر چې ماتې تجربه کړې، هغومره زر به پوه شې چې په رېښتینې توګه څه ته اړتیا لرې څو بریالی شې. نو هر څومره ژر چې کېږي، ماتې تجربه کړه؛ له خپلو ملګرو څخه ډېره. له اوسني حالت څخه دې هم ډېره. د رابرټ اف په یوه جمله دا مطلب پای ته رسوم چې وایي: «یوازې هغوی عظمت او لویوالي ته رسېدای شي چې د ماتې د منلو لپاره بې ساری جرئت لري.»

له ماتې پرته هېڅ بریا نشته. ماتې د پرمختګ یوه برخه ده. اړینه ده چې ماتې تجربه کړې څو بریا ته ورسېږې.

## ۸۵. ستاسو د تکامل د مسیر پرښتې

ذهن ته مې يو فکر راغی، تاسو مخکې هغه اورېدلی دی. څومره چې ډېر د فکرونو تر اغېز لاندې راشو، هغومره ډېر يې د ځان په لور را جذبوو. کټ مټ لکه د يو اغېزناک کتاب لوستل د دويم او درېيم ځل لپاره. هر ځل يې چې لولې، نوې درته ښکاري. ایا کتاب بدل شوی دی؟ نه، ته بدل شوی يې. يوازې په کتاب باندې د پوهېدو لپاره ستا ظرفيت زيات شوی دی. نظر دې د نړۍ په اړه پراخه شوی دی. د پوهېدو ځواک دې وده کړې ده، په پايله کې دې د علم لوړې مرحلې په نوموړي کتاب کې کشف کړې دي. لاسته راوړنې تل په همدې کتاب کې وې، يوازې ستا سترګو نه ليدې.

هغه فکر چې زه يې په رېښتينې توګه مينوال يم، کولای شو چې په دې لمريزه زمانه کې يې يوازې په يوه جمله خلاصه کړو؛ د تکامل د مسير پرښتې. هېڅ بې مانا او بې اړيکې شی نشته. يوازې بايد د ژوند ستونزو ته له يوه واضح ليدلوري وګورو. کېدای شي چې همداسې وي، د تکامل د مسير پرښتې. هغه څوک چې تا له ستونزو سره مخ کوي، هغه څوک چې تا بدلون او سخت کار

ته هڅوي، کېدای شي چې په يو ډول نه يو ډول ستا د ژوند لپاره پرښته و اوسي. کېدای شي دا هغه پرښتې وي چې بلې مرحلې او عظمت ته ستا د رسولو لپاره اړين او غوره درسونه در زده کوي.

ستا د ټيم هغه غړي چې ته ورسره ستونزه لرې، کېدای شي چې ستا د ټيم د نورو غړو د پېژندلو لپاره ستا لپاره يوه پرښته وي. بد چلنده پلورونکی کېدای شي چې ستا د مرستې او ستا لپاره د شفقت، مهرباني او له نورو سره د غوره اړيکو د زده کړې لپاره د يو لامل په توګه ستا د لارې په اوږدو کې ظاهر شوی وي. کېدای شي دا به در زده کوي چې څنګه له نورو سره د خپل حق د غوښتو لپاره مقابله وکړې. په کار کې وروسته والی او يا په کسب کې نا هيلي، کېدای شي هغه پرښته وي چې له تا سره مرسته کوي څو خپلې ستونزې حل کړې او يا خپلې ژمنې په ياد راوړې. يوه پېښه کېدای شي چې تا را ويښ کړي څو په خپل خوراک، ورزش، ارامتيا او درون ګرايي باندې يو ځل بيا کتنه وکړې او لا يې ښه او غوره کړې.هره پېښه د هغې شېبې څرګندونه کوي او تا ته د هغه عظمت او لويوالي په لور لارښوونه کوي چې ته يې وړ او حقدار يې.

د تکامل د مسیر پربښتې او د ژوند ستونزې هغه څه دي چې تاسو هغه ځای ته رسوي، کوم چې هیله مو یې درلوده. هغه خلک او پېښې چې موږ تحریکوي، موږ غوسه کوي او موږ ته زیان رسوي، په حقیقت کې هغه لاملونه دي چې موږ ته د کار، کور او ژوند په اړه اړین درسونه را زده کوي، څو د خپل ژوند په اوږدو کې وځلېږو، بدلون، وده او پرمختګ وکړو.

---

**هغه څوک چې تا له ستونزو سره مخ کوي،هغه څوک چې تا بدلون او سخت کار ته هڅوي، کېدای شي چې په یو ډول نه، یو ډول ستا د ژوند لپاره پربښته و اوسي.کېدای شي دا هغه پربښتې وي چې بلې مرحلې او عظمت ته ستا د رسولو لپاره اړین او غوره درسونه درکوي.**

---

## ۸۶. د خلکو لپاره الګو اوسئ

څو ورځې مخکې مې له یوه پخواني ملګري سره خبرې کولې. د یوه پام وړ سوداګرۍ شرکت رهبري او مشري کوي او د خپلې دغه مسلک او کسب لپاره یې اړین او ټول ضروري کارونه هم کړي دي. نوموړی یو له مانا ډک ژوند لري. یو څه یې راته وویل، غواړم چې له تاسو سره یې هم شریک کړم. داسې یوه غوره خبره چې د نورو په منځ کې د نفوذ درلودلو لپاره ډېره اړینه ده. ده وویل: «داسې یو رهبر و اوسه چې د نورو لپاره مخ بېلګه(الګو) او سرمشق شې.» دا یې هم وویل چې: «رابین، په نړۍ کې غوره نصیحت هغه دی چې په خپلو سترګو یې و وینې.» په دې مانا، پرېږده چې ژوند ستا لپاره یو پیغام وي. په خپل حقیقت کې ژوند وکړه، له خپلو ارزښتونو سره ژوند وکړه، له خپلې فلسفې نه ګټه واخله. په دې سره به د خپل شاوخوا خلک د ښه کېدو او عالي کېدو لوري ته وهڅوې.

خبرې کول ساده دي، عمل کول پرې ډېر سخت. په دې توګه لوی انسانان داسې دي چې لوړه اراده، عظمت او لویوالی لري، دوام راوړونکي، غوښتونکي او عملي کوونکي دي. لکه څنګه چې

مشـهور اروا پـوه براهـام مـازلو وايـي: «د خـوښ او راضي اوسـېدو لپـاره باید په هغه کس بدل شو چې هغه ډول و اوسېدلای شو.»

**«په نړۍ کې غوره نصیحت هغه دی چې په خپلو سترګو يې و وینې.»**

## ۸۷. د فکرونو د تولید فابریکه اوسه

یـو لـوی فکـر کـولای شي چـې ستاسـو ژونـد بـدل کـړي، ان کېـدای شي زمـوږ شـاوخاو نـړۍ بدلـه کـړي. د دې فکـر لپـاره هغـه نبـوغ تـه اړتیـا ده چـې زمـوږ د کـار اصـولو تـه بـدلون ورکـړي. زه یـو حیرانـوونکی کتـاب لـولم چــې د «کــوچني نوښــتونه او ورځنــۍ حیرانــوونکې طرحــې» نــومېږي. او پـاولا انتـونلي لیکلـی دی. نومـوړی پـه نیویـارک کــې د معــمارۍ، طرحــې جوړولــو او نویــو هنرونــو د یــوه انســتیتیوت مـدیر دی. د خپـل کتـاب پـه یـوه برخـه کـې یـې د دانیـل کادزیـک پـه نـوم د یـوې طراحـۍ پـه اړه یـو مطلـب لیکلـی و. نومـوړی هغـه څـوک دی چــې پــه خپلــه مېړانــې سره یــې د نوشــابې د المــونیمي قطیــو سرپوښـونه داسـې طراحـي کـړل چـې لـه خلاصـولو وروسـته د قطـي د پاسـه پـاتې شي. اوس دا طرحـه کـولای شـو د هغـه مېلیونونـو نوشـابو د قطیو پر مخ و وینـو چـې هـر کـال بـازار تـه راځـي. لـه دې طرحـې نـه مخکـې، کلـه بـه چـې خلکـو د نوشـابې سر خـلاص کـړ، نـو سرپـوښ بـه یـې د یـوه اضـافي تـوکي پـه څېـر پـه کثافـاتو او یـا هـم د سـړک پـه سر غورځـاوه چـې دا کـار د زرګونـه کیلـو ګرامـه کثافـاتو د زیاتېـدو لامـل و. حتی ځینـې وخـت خـو بـه یـې د پـلي کسـانو پښـې هـم زخمـي کـولې.

یوازې یوې نظریې دې هر څه ته بدلون ورکړ.

یوه شپه ښاغلي کادزیک لـه خپلـو اولادونـو سره تلوېزیـون تـه ناست وچې ناڅاپـه یـې همـدا نظریـه او فکـر پـه ذهـن کـې تېـر شـول. (تـر ټولـو غـوره فکرونـه او نظریـې هغـه وخـت سـتا ذهـن تـه درځـي، چـې هېڅ تمه یـې نـه لـرې.) ډېری بـدلوونکي او انقلابي نظریات پـه ډېـر فکـر کولـو سره ستاسـو ذهـن تـه نـه درځـي، دا نظریـې هغـه وخـت سـتا خواتـه درځـي چـې کلـه د تفـرېح پـه حـال کـې وی؛ نـو پـه دې اساس، تفـرېح وکـړه! دا سـتا د کـار او کسـب لپـاره ډېـره ښـه ده، تفـرېح سـتا روح او روان ته هم گټه کوي.

ښـاغلي کادزیـک پرتـه لـه دې چـې فرصـت لـه لاسـه ورکـړي، (زمـوږ ډېـرو پـر خـلاف) خپلـه نظریـه یـې پـه یـو سـپین کاغـذ ولیکلـه او زر تـر زره یـې یـو طـراح تـه واسـتوله، هغـوی ورتـه لـومړنی طرحـه جـوړه کـړه. فکـر وکـړئ چـې وروسـته بـه څـه شـوي وي؟ دا نظریـه عملـي شـوه. دا موضـوع مـا دې تـه اړبـاسي چـې تاسـو تـه سپارښـتنه وکـړم: د فکرونـو د تولیـد فابریکـه اوسـئ. البتـه تاسـو بایـد د علاقـې او ژمنـې ښـبـتن وی څـو خپلـو افکـارو او نظریـاتو تـه ژونـد ورکـړئ او پـه غـوره بڼـه یـې عملـي کـړئ. دا هرڅـه سره یـو ځـای کـړه څـو یـو بـې سـاري محصـول بـازار تـه وړانـدې کـړې. ایا دا کړنه یو فوق العاده امر نه دی؟

**یو لوی فکر کولای شي چې ستاسو ژوند بدل کړي، ان کېدای شي زموږ نړۍ بدله کړي. د دې فکر لپاره هغه نبوغ ته اړتیا ده چې زموږ د کار اصولو ته بدلون ورکوي.**

## ۸۸. تل رېښتيا وايه

اونـی مخکـې لـه خپلـو اولادونـو سره لـه رخصـتيو وروسـته هاليفـاکس تـه را ورگرځېـدو، دا د اتلانتيـک بحـر پـه سـواحلو کـې يـو ښـکلی ښـار دی او همدارنگـه د ځـانگړو خلکـو، خونـدورو خـوړو او سرو کـړو کبـانو ځـای هـم ورتـه وايـي. (هغـه ښـار چـې زه پکـې را لـوی شـوی يـم.) دې ښـار تـه د دې لپـاره ورغـلي وو چـې د يـوه ملگـري د واده ځلوېښـتمه کليـزه ونمـانځو. لـه دې نـه مخکـې يـو کتـابتون تـه ولاړو، کلـه چـې بېرتـه را ووتـو، لـه مخـې مـو يـو مـوټر تېـر شـو چـې پـه شـا يـې دا نـه هېرېـدونکې جملـه ليکلـې وه: «تـل حقيقـت و وايـه حتـی ان کـه د ويلو پر مهال دې غړ ولړزېږي هم.» ښومره ښکلې جمله!

نـن ورځ ډېـر خلـک ښـې خـبرې کـوي، ډېـری کسـان بيـا بـې گټـې او سـپکې خـبري کـوي، داسـې بـې ارزښـته خـبرې چـې د يـوې اوربشـې پـه انـدازه هـم ارزښـت نـه لـري. حقيقـي رهـبران تـوپير لـري، هغـوی لـږ خـبرې کـوي او ډېـر عمـل کـوي. زه د خاموشـه رهبرانـو مينـوال يـم، هغوی چې لږ ژمنې کوي او ډېر عمل کوي.

کلـه چـې خـبرې کـوي، حقيقتونـه وايـي. زمـوږ پـه منـځ کـې بريـالي سـوداگر هغـه دي چـې پـه دې پـوهېږي خـبرې کـول يعنـې پـر هغـوی

عمل کول. پر ژمنو او خبرو عمل کول د انسان باور سل برابره زیاتوي او دغه کار د اطمینان اصلي بنسټ دی. نو ژمنه وکړه چې په خپلو خبرو به تر اخري جزیاتو پورې عمل کوې.

تاسو په رښتیا سره کولای شی چې یو رهبر شی، دا توپیر نه کوي چې نوم او عنوان مو څه شی دی. په تیاتر کې دا معقوله ده چې وایي: «هېڅ یو رول کوچنی نه دی.» په ژوند کې هېڅوک کوچني نه دي. الیور وندېل هولمز ویلي دي: «هر کار د ارزښت وړ دی خو که چېرې په عالي بڼه ترسره شي.» تاسو هره ورځ په کور او یا کار ځای کې د دې فرصت لرئ څو بدلونونه رامنځته کړئ او خپل پوټنشیل ښکاره کړئ. هغه څه چې رهبران له پیروانو څخه بېلوي، له همدې کبله دوی په صراحت، صداقت او جرئت سره حقیقتونه بیانوي، ان که له خپل فکر وډار شي او یا یې غږ ولړزېږي.

---

**هغه څه چې رهبران له پیروانو نه بېلوي، هغه په صراحت، صداقت او جرئت سره حقیقتونه بیانول دي.**

---

# ۸۹. رهبري او مشري له کوره پیلېږي

یو کنفرانس ته پر لاره وم چې یوه تابلو مې ولیده. پر تابلو څه داسې لیکل شوي و: خپلو اولادونو ته څه ور زده کوئ؟ لوی فکر، مشري له کوره پیل کېږي.

فکر کوم چې د اولادونو د غوره تربیت لپاره تر ټولو نفوذي او اغېزناکه لاره داده چې په غوره بڼه ژوند وکړو، له ځان سره رېښتیني و اوسو څو دوی هم په دې ارزښتونو پسې لاړ شي، که څه هم د دوی مزل بېل دی. هغه کوچنیو رهبرانو ته څه پیغام لرئ چې ستاسو کړنو او اعمالو ته ګوري او له تاسو څخه الګو اخلي او تقلید کوي؟ ایا دوی ته ښیئ چې په هر کار کې ښه والي او عالي توب په پام کې وکړي؟ او یا دا چې دوی ته ورزده کوئ څو کوچني پاتې شي او د ژوند په ډېره ټیټه سطحه کې لاس او پښې و وهي؟

د ونې مېوه د ونې له څلور چاپېره لرې نه تویږي. ستاسو اولادونه له هغه نه ډېر عمل کوي، څومره چې تاسو فکر کوئ. کولای شی له خپلو اولادونو سره مرسته وکړئ څو عظمت ته ورسېږي. ستاسو په ښې رهبرۍ سره دا کار شونی دی.

**د ونې مېوه د ونې له چهار چاپېره لرې نه توېږي. ستاسو اولادونه له هغه نه ډېر عمل کوي، څومره چې تاسو فکر کوئ. کولای شئ له خپلو اولادونو سره مرسته وکړئ څو عظمت ته ورسېږي. ستاسو په ښې رهبرۍ سره دا کار شونی دی.**

## ۹۰. قوانینو ته درناوی ولرئ

کله کله په کاري محیط کې د درناوي لفظ ډېر بې مانا او بې ارزښته ګڼل کېږي. دا موضوع دومره ښکاره ده چې ان په اړه یې خبرو کولو ته اړتیا نه لرو. پوهېږو چې که چېرته مدیران له خپلو کارکوونکو سره ښه چلند وکړي، کارکوونکي به یې هم د زړه له تله کار کوي او ارتقا به کوي. البته که په دې پوه شي چې ارزښت ورکول کېږي او باور پرې شوی دی. پوهېږو چې ټول د دې غوښتونکي دي څو په داسې محیط کې کار وکړي چې وکولای شي وده وکړي، هلته ملګري ولري او وکولای شي چې خپل ځان پیدا کړي. ایا په رښتیا په دې شیانو پوهېږو؟

اوس اوس د (سیراتا سورويي اینتلیجنس) د سروې شرکت، په کاري چاپېریال کې د مقابل احترام په اړه له ۳۷۰ تر ۳۷۸ کارکوونکو په اړه یوه سروې کړې ده. دا مطالعه په کاري محیط کې د مقابل درناوي په اړه ده چې کېدای شي د ځینو په نظر ډېره ساده او واضح موضوع وي. فکر وکړئ څه به شوي وي؟ د هغه کسانو له دلې څخه چې سروې وربانديې شوې وه، یوازې ۲۱ سلنه تر مدیریت لاندې کسانو د خپلو مدیرانو درناوی نسبت خپل

ځانته احساس کړي و. کېدای شي چې زموږ په کاري چاپېريال کې د مقابل درناوي رېښتې دومره نه وي غځبدلې، څومره چې موږ باور لرو. دلته يو عالي فرصت ليدل کېږي.

دا څېړنه همدارنګه ښيي، هغه کارکوونکو چې نسبت خپل ځانته يې ډېر درناوی حس کاوه، همغه کارکوونکي و چې په هغه شرکت کې يې چې دنده ترسره کوله، تر ټولو وفادار همدوی و. همدا کسان و چې د غوره استعدادونو د ساتلو او غوره جذب په نرۍ کې تر ټولو ښه او بريالي کسان حسابېدل. هر هغه څه چې ژمنتيا رامنځته کوي، بايد تر سره شي. قوانينو ته درناوی وکړئ. له نورو سره غوره چلند ډېر عالي دی. په خپلو کارکوونکو کې د خاص والي او ځانګړيتوب احساس پيدا کړئ. دا له دې کبله چې هغوی په ربښتيا هم ځانګړي او خاص دي. لاندې څو بېلګې په کاري چاپېريال کې يو بل ته د درناوي په اړه ذکر شوې دي:

- د «هيله کوم» يا «مهرباني وکړئ» او يا د «مننه دی يم» کلمو ويل.
- پر خپل وخت راتلل(وخت پېژندل د لويو خلکو له ځانګړتياوو څخه ده.)

- کــارکوونکي د غــوره او عــالي کړنــو پــه مقابــل کــې ســتایل او هڅول.
- یـو غـوره اورېـدونکی اوسـېدل(خلک سـتا د دې کـار لـه کبلـه سـتا سره مینه پیدا کوي.)
- د هغه کسانو لپـاره یـو ښـه مشر- اوسـه چـې سـتا لپاره کـار کـوي او دوی تــه اجــازه ورکــړه څــو لــه خپــل پوټنشــیل څخــه ګټــه واخلي(موږ ټول غواړو چې غوره او عالي و اوسو.)
- د مننې کارتونه ولیکه.
- رېښتینولي او صداقت د خپلو کارکوونکو د ارتقا بنسټ وټاکه.
- خپلــو کــارکوونکو د منطقــي جســارت او پلټنــو اجــازه ورکــړه او د ماتې خوړلو پر مهال یې ازاد پرېږده.
- د نوښت کولو او اعتبار خپلولو سپارښتنه ورته وکړه.

کلــه چــې خلــک د دې احســاس وکــړي چــې درنــاوی ورتــه کېــږي، نسـبت خپـل ځانتـه ښـه احسـاس کـوي او هغـه خلـک چـې د ښـه والي احساس کوي، کارونه په ښه توګه ترسره کوي.

---

**کار کوونکو ته مو د نوښت کولو او اعتبار خپلولو سپارښتنه وکړئ.**

---

## ۹۱. له مایکل. جي. فاکس نه یې زده کړئ

تېره شپه مې د جي. فاکس(د امریکایي سینما یو لوبغاړی دی) تلوېزیوني مصاحبه کتله چې د ان. بي. سي له شبکې څخه نشرېده. کېدای شي پوه وی چې نوموړی د پارکینسون ناروغي لري. دا ناروغي کولای شي چې د ډېرو ژوند واخلي مګر د جي. فاکس نه. نوموړي وویل چې دې ناروغۍ ورته خیر او برکت راوړی او د دې لامل شوې څو د ژوند له ټیټو سطحو څخه را و وځي او لوېې لاسته راوړنې ولري: لکه علم، درک او فهم او له ژوند او خلکو سره مینه.

یو لوی فکر: په ژوند کې د دردوونکو مسائلو تجربه هغه با ارزښته فرصت دی چې کولای شو خپل غوره والی لاسته راوړو. د ارامیو پر مهال موږ د سطحي او عادي شیانو او خوندونو له کبله خپله لاره ورکوو. ستونزې او سختۍ موږ د فکر ژورو برخو ته بیایي، بې مانا شیان یوې خواته کېږي او وېښېږو څو و وینو چې کوم موضوعات ارزښتمن دي، ځینې موضوعات لکه کورنۍ، ملګري، اړیکې او دا چې د نړۍ لپاره ښه او غوره اوسو. موږ ته را زده کوي چې هره

ورځ د خلکـو لـه لـوري د ډالیـو شخـه خونـد واخلـو او نـړی لـه هغـه شخه چې اوس ده، لا ډېره ښه وپېژنو.

هـر ژونـد پـای لـري، تـوپیر نـه کـوي چـې څـومره عمـر کـوو، زمـوږ ټولـو پـای یـو دی. مخکـې لـه دې چـې دې حقیقـت تـه ورسـېږو، پـه یـو مـوټی خـاوره بـه بـدل شـوي یـو. هغـه پدیـدې چـې اوسـمهال یـې مـوږ احاطـه کـړي یـو لکـه (وېـره، کـبر او تېـرې نـاهیلی) دا هرڅـه لـه منځـه ځـي. بلاخـره دې پـایلې تـه رسـېږو چـې د غـوره اوسـېدو او ځلېـدو وخـت پـه رښـتیا هـم همـدا اوس دی. نـو لـه مایکـل. جـي. فـاکس نـه مننـه کـوم چـې جرئـت او رهـبري یـې را زده کـړه. د دې لپـاره چـې پـه خـبرو کـې یـې صـداقت موجـود دی او پـه تیـاره نـړی کـې د یـو څـراغ په شان دی.

---

**هر ژوند پای لري، توپیر نه کوي چې څومره عمر کوو، زموږ ټولو پای یو دی.**

---

## ۹۲. د سفر مسیر مو مقصد ته تر رسېدو ډېر ارزښت لري

د جي. کیو مجلې په یوه مطبوعاتي خبرتیا کې راغلي و: «موخې ته د رسېد لپاره کولای شئ له بېلابېلو مسیرونو څخه کټه واخلې.» د دې جملې مانا او مفهوم مې ډېر خوښ شول. په رښتیا چې سم یې ویلي دي. د هرې موخې په طرف سفر ارزښت لري، هغه که د ژوند او یا کار ښه کول وي او یا هم یوه بله غوره موخه. د سفر ارزښت مو د موخې له ارزښت نه کم نه دی. هغه موضوع چې غواړم اشاره ورته وکړم داده چې، په ژوند کې یوې لوړې پوړۍ ته سفر کول هغومره ارزښت لري لکه خپل هماغه مقام او لوړې پوړۍ ته رسېدل. وبه پوښتی چې ولې؟ ځکه چې خپلو موخو ته د رسېدو په خاطر مخ پر وړاندې تلل ستا شخصیت تشکلیوي او داسې فرصتونه په لاس درکوي څو خپل پوټنشیل لاسته راوړې، دې ته دې هڅوي څو وګورې چې څومره خپلې موخې ته د رسېدو غوښتونکی یې. دا په ژوند کې پرمختګ دی چې تاته بدلون درکوي، تاته درس درکوي او هغه نبوغ چې په تا کې نغښتی دی، ویښوي. تاته د دې اجازه درکوي څو د خپل عظمت او لویوالي کیفیتونه لکه استقامت، جرئت، انعطاف منلو، ترحم او درک ته وده ورکړې. زه لومړنی کس یم چې له تا سره په دې اړه

موافقه کوم، مگر هغه جاوېداني لارښووني چې د خپل سفر په اوږدو کې ورته اړتیا لري ، یوازې موخې ته د رسېدو په لاره کې به یې ترلاسه کوې. نسبت بریا ته له ازموینو نه ډېر څه زده کولای شو.

نو که له دې وروسته خپلو موخو ته د رسېدو په لاره، کار او ژوند کې له بې صبرۍ او یا ناهیلۍ سره مخ شوې، دا در په زړه کړه چې په داسې یو موقعیت کې یې کوم چې ستا لپاره غوره وخت دی څو وده وکړې. کېدای شي چې د سفر مسیر دې له هغه موخې څخه چې غواړې ورته ورسېږې، غوره وي.

---

**«موخې ته د رسېد لپاره کولای شئ له بېلابېلو مسیرونو څخه گټه واخلې.»**

---

## ۹۳. بریا څه ده؟

زما پـه انـد د بریـا مانـا دا ده چـې پـه داسـې لاره قـدم کېـږدو څـو پـه مینـې او علاقـې سره زمـوږ لـوی ارزښـتونه راتـه مـنعکس کـړي او مـوږ د ژورو عقیـدو او لـوړو هیلـو او غوښـتنو پنځـونکی کـړي. د لـویی مانـا پـه لانـدې عبـارت کـې نغښـتې ده، لـه تاسـو غـواړم چـې جزئیـات یـې تحلیـل او تجزیـه کـړی او پـه ژوره توگـه فکـر پـرې وکـړئ: (د سـفر مسـیر مـو لـه مـوخې څخـه پـه رښـتیا هـم چـې غـوره دی.) د دې عبـارت یـوه برخـه، پـر اصـولو د ولاړ ژونـد رامنځتـه کـول او بلـه برخـه یـې د ژونـد نـه د خوښـې او رضـایت پـه اړه ده. لـومړی برخـه یـې بیـانوي چـې ستاسـو ژونـد ستاسـو پـه شخصـي- بـاورونو او ارزښـتونو ولاړ دی څـو د خپـل ژونـد اصـول د صـداقت او رېښـتینولۍ پـه بنسـټ برابـر کـړئ. دویمـه برخـه یـې همغـه د هیلـو او غوښـتنو تعقیبـول او پـه حقیقـت بـدلول دي. هغـه هیلـې اوغوښـتنې چـې هـره ورځ مـو را ویښوي او زړونه مو له ولولو ډکوي.

دا ټکـی ماتـه د مـارک ټـواین خـبره را یـادوي چـې ویـلي یـې و: «شـل کالـه وروسـته بـه د هغـه کـارونو پـه اړه پښـېمانه شـې چـې تـر سره کـولای دې شـول، خـو ودې نـه کـړل، نـو هڅـه وکـړه ځـان لـه دې

حالت څخه وباسه. د ساحل د غاړې نرم او خواږه نسیمونه پرېږده او د بحر منځ ته لاړه شه څو نوي څه و وینې او لا ډېرې او نوې هیلې وکړې او کشفیات ترسره کړې.» دا رېښتینی بریالیتوب دی.

---

**د بریا مانا دا ده چې په داسې لاره قدم کېږدو څو په مینې او علاقې سره زموږ لوی ارزښتونه راته منعکس کړي او موږ د ژورو عقیدو او لوړو هیلو او غوښتنو پنځوونکي کړي.**

---

## ۹۴. ستاسو تر ټولو لویه ازادي

زما د خوښې وړ يو کتاب ( انسان د مانا په لټه کې) کې دی چې اتریشي- اروپوه وېکتور فرانکلېن لیکلی دی. نوموړی د المان په نازی زندان کې د ډېر وخت لپاره پاتې شوی دی. په زندان کې د ده د شاو خوا ډېر کسان هلاک او له منځ ولاړل. هغوی خپل امېدونه له لاسه ورکړي و او په ناهیلۍ کې مړه شول. زما په باور فرانکلېن وکولای شول چې د بشر-یت د ازادۍ پر عظمت باندې د باور درلودلو پواسطه له دې ناورین څخه ځان سالم او روغ را وباسي. ازادي په دې مانا ده چې څنګه هره پېښه هضم او وزغمو، څنګه ټاکنه وکړو او د پېښو پر وړاندې څنګه عکس العمل ښکاره کړو. په هره پېښه کې کولای شو چې په خوښیو پسې وګرځو او یا هم د بدیو په جادو کې را ګیر شو. فرانکلېن لیکلي دي(له انسان څخه هر څه اخیستلای شو، پرته له یو شي څخه چې هغه یې د خپلو هغه نظریاتو د ټاکنې حق دی چې خپله لاره ورباندې ټاکي.) خومره ځلېدونکي افکار.

«له انسان نه هر څه اخیستلای شو، پرته له یو شي څخه چې هغه يې د خپلو هغه نظریاتو د ټاکنې حق دی چې خپله لاره وربانديې ټاکي.

## ۹۵. د خپل داستان ليکونکي اوسئ

تېره شپه مې لـه تلوېزيـون څخـه د لـوی فکـر خپرونـه کتلـه چې د ډاني ډواچ لخـوا پـرمخ وړل کېـده. لـه تلوېزيـون لېـدلو سره ډېـره مينـه نه لـرم، خـو دا خپرونـه مـې خوښـه شـوه. دې خپرونـې تـه غـوره مېلمانـه را بلـل کېږي. حيرانـوونکې نقطـې او الهـام بښـونکي مطالـب لـري. د دې خپرونــې چلــوونکي د سي اېــس آی فلــم ليکــوال رابللــی و، دا هغه کس و چې يـو وخـت يـې پـه لاس وېګـاس کـې ښـاري رېـل ګـاډی چـلاوه، عايـد يـې پـه يـو سـاعت کـې لـه اتـه ډالـر او پنځـوس سـېنټه څخـه زيـات نـه و مګـر نومـوړي لـوی فکـر درلـود. نومـوړي د سُـنتي او پوليسيــ فلمونــو پــه ليکلــو سره وکــولای شــول چــې خپــل فکــر او شخصـيت تـه بـدلون ورکـړي. زه يـې د هـاليووډ د ليکونکـو، داسـتانونو او موضــوعاتو پــه فکــر کــې ډوب کــړم. د دې ډول فلمونــو ليکــوالان کـولای شي چـې لـه خپلـو داسـتانونو څخـه هـم يـو فلـم وليکـي. دوی کـولای شي چـې د خپـل فلـم شخصـيتونه پـه خپلـه وټـاکي. تاسـو هـم کـولای شـی چـې دا کـار وکـړی. سـمه ده چـې مـوږ پـه دې نـه پـوهېږو چـې ژونـد بـه مـوږ تـه ځـان څـه ډول راښـيي. ډېـرې وختونـه لـه داسـې پېښــو سره مـخ کېـږو چـې تمـه يـې نـه لـرو، هغـه پېښـې دي چـې

وړاندوینه مو یې نه وي کړې، خو د خپل داستان په لیکلو او غوره عمل کولای شو چې د هالیووډ د فلمونو په شان یو د خوښې وړ پایلې ته ورسېږو. له هغه کسانو نه به غوره یو چې دا کار نه ترسره کوي.

---

**کېدای شي زموږ ډېرې شخصي او یا مسلکي هیلې په حقیقت بدلې شي، البته که داستان یې په خپله ولیکو. دا کړنه یوه ښکلا ده.**

## ۹۶. د عظمت د مسؤليت بار

د (ازادۍ لیکونکي) په نوم یو فوق العاده فلم مې د دویم ځل لپاره له خپلو اولادونو سره یو ځای ولید. د دې فلم داستان زه په دې فکر کې ډوب کړم چې کوم شی تر ټولو ښه او غوره دي؟ د ژوند په پای کې هغه شیان چې له مور نه پاتې کېږي دا دي چې څه راڅخه جوړ شول، پر نورو مو کومې اغېزې وکړې او څومره مینه او محبت مو د نورو لپاره قرباني کړل. د دې فلم په یوه صحنه کې یو پلار په خپل زوی باندې له دې کبله وياړي چې د غریبو کورنیو ماشومانو ته یې د خپلې مجلې د چاپ په مرکز کې دندې ورکړې او د دوی په اړه یې لیکنې او د مرستې غوښتلو خبرتیاوې نشر کړې. دا هغه ماشومان وو چې د ښوونکو لخوا په ښوونځي کې د شاملېدو لپاره رد ځواب ورکړل شوی و. نوموړي پلار خپل زوی ته وویل: (پر تا باندې یو ځل بیا ګران بیه برکت نازل شوی دی.) زه باور لرم چې دا موضوع به زموږ هر یوه لپاره یو سر مشق او الګو وي. لکه څنګه چې د ګوګل یو بنسټ ایښودونکی لاري پېج وايي: (( رهبري یعنې په منطقي ډول د نا ممکنو او ناشونو په پام کې نه نیول.))

مـوږ تـول د وړتیـاوو، سرچینـو او قـابلیتونو درلـودونکي یـو چـې زمـوږ د ځانګړتیـاوو ښـکارندوی دي. دا ډالـۍ او ځانګړتیـاوې لـه ځـان سره یـو لـړ مسـولیتونه هـم لـري. دا مسـولیت چـې بایـد ګټـه تـرې واخلـو، هڅـه وکـړو چـې دې ځانګړتیـاوو تـه وده ورکـړو او ویـې ځلـوو ځـو لا غـوره او تقویـه شي. لـه دې سره بـه وکـولای شـو چـې نـوي ارزښـتونه رامنځتـه کـړو او د خپلـو شـاوخوا خلکـو نـړۍ تـه ارتقـا ورکـړو. ( زه د هـارلي ډېوېډسـن د خبرتیـا سـتاینه کـوم چـې مـوږ یـې وهڅولـو ځـو دومـره ښـه شـو چـې لـه مـوږ نـه وروسـته بـل څـوک زمـوږ ځـای ونـه نیسي.)

---

**د عظمت او لویوالي د مسولیت هېرول داسې دي لکه د ژوند کولو لپاره چې هېڅ منظور او دلیل ونه لرې او له دې ستره ماتې نشته.**

---

## ۹۷. په مینه او لېوالتیا ژوند وکړئ

په لوړ غږ موسیقي اورېدل مې خوښېږي؛ د تېنګې قهوې خوند مې خوښېږي؛ لویې هیلې، رنګارنګ ورځې او له شوق او علاقې ډک خلک مې خوښېږي. داسې خبرې مې خوښېږي چې زما په وجود کې غوره بدلونونه راولي. غواړم داسې ژوند وکړم، لکه د ژوند وروستۍ ورځ مې چې وي. غواړم چې غوره او ښه اوسم. غواړم له هغه خلکو سره مینه ولرم چې په ژوند کې یې لرم. غواړم چې د نړۍ د ښه والي لپاره خپل رول ولوبوم. غواړم چې په مینه او علاقه مندۍ ژوند وکړم.

څومره ښکلې جمله ده! په مینه او علاقه مندۍ ژوند وکړه. ژوند په رېښتیني توګه تجربه کړه، په خپل ټول وجود ژوند وکړه، زړور او پلټونکی اوسه، په ښه او غوره کېدو فکر وکړه، خپل تېر وخت ته فکر وکړه او په پای کې زه د دې جملې مینوال یم چې وایي( دومره ژوند وکړه چې له شوق او علاقې تر پوزې راشي.)

بلکل موږ کولای شو چې له ژونده خوند واخلو، په ارامۍ قدم و وهو او د پام وړ جرئت له مهربانۍ سره یو ځای کړو. دا هر څه باید په مینه، علاقه، جرئت او زموږ د سترګو په رڼایي تر سره شي. په

خپلـه ټولـه مینــه او علاقــه دا کـار تــرسره کـړئ. لویـان ټــول دا ډول وي.

---

**مو په ریښتیا هم کولای شو له ژونده خوند واخلو، په ارامۍ قدم و وهو او د پام وړ جرئت له مهربانۍ سره یو ځای کړو. دا هر څه باید په مینه، علاقه، او جرئت سره وي. په خپله ټوله مینه او علاقه باندې دا کار ترسره کړئ. لویان ټول دا ډول دي.**

---

## ۹۸. پر نور اغېز وښندئ

د ښېسټ لايف مجلې په يوه برخه کې د جورج کلوني له دې ليکنې سره مخ شوم چې: ( په ژوند کې د دې لپاره ډېر لنډ وخت لرې څو وکولای شې چې پر نورو خپلې اغېزې وښندئ.) ايا دا ښکاره ده؟ شايد، مگر حقيقت لري.

د ژوند د ورځنيو اړينو کارونو ترسره کول په ډېره اسانۍ سره تاسو دومره بوختوي چې دا هېر کړئ څو له ځانه يو ميراث پرځای پرېږدئ. د ژوند پر مسايلو تمرکز کول شايد تا دومره بوخت کړي چې په خپلو هيلو پسې گرځېدل او د هغوی لاسته راوړل هېر کړې. په ډېره اسانۍ سره کولای شې چې د خپلو ورځنيو کارونو په واسطه جذب شې او عظمت ته له رسېدو لاس واخلې. ژوند په چټکۍ سره روان دی. که چېرې ته د خپل ژوند هره ورځ د يو ځانگړي کار، وده کولو او شان او شوکت ته د رسېدو لپاره تېره نه کړې، کېدای شي چې د هغه کړنو او اعمالو فرصت له لاسه ورکړې چې د ارزښت وړ دي او کولای شو چې حساب پرې وکړو.

د ريچارډ لېډر دې خبرې ته په پام سره چې وايي: ( له هغه خلکو نه چې عمر يې تر ۶۵ کالو لوړ و، پوښتنه وشوه چې که کولای مو

شوای ژوند له سره پیل کړی، کومې کړنې به مو په بله بڼه تر سره کړې وې؟ دوی وویل چې درې شیان: لومړی، د لویو پوښتنو کول، دویم، لا ډېر جرئت به مو کړی و څو د ژوند او مینې لپاره جسارت او پلټنې وکړو. درېیم، د دې لپاره مو هڅه کوله څو ژوند مو یوه موخه ولري او وکولای شو چې بدلونونه رامنځته کړو. ژوند ټول همدا دی.

**که چېرې ته د خپل ژوند هره ورځ د یو ځانګړي کار، وده کولو او شان او شوکت ته د رسېدو لپاره تېره نه کړې، کېدای شي چې د هغه کړنو او اعمالو فرصت له لاسه ورکړې چې ارزښت درته لري او حساب پرې کوې.**

# ۹۹. کټور نوښت وکړئ

د سهار مهال دی چې دا لیکنه کوم. په خپل کتابتون کې د استراحت په حال کې یم. د (لوسیانو لیګابو) سندرو ته غوږ یم، نوموړی د د ایټالیا د راک موسیقۍ یو پوه دی او زه یې په روم کې له کارونو سره اشنا شوم، څو اونۍ کېږي چې نوموړي د خپلې موسیقۍ په واسطه زما د زړه پایې په لړزه راوستلې دي. د ژوند د رهبري کولو په فکر کې ډوب یم.

د ونتې فیر د ورځپاڼې یوه برخه مې ولوسته، د یو لیکوال په اړه وه چې (ارټ باکوالډ) نومېده. دا کس اوس اتیا کلن دی او د ځیګر په ناروغۍ اخته دی. کله چې مرګ ته نږدې کېږو، دې پایلې ته رسېږو چې په ژوند کې کوم شی ډېر ارزښت لري او حقیقتونه ښکاره کېږي. د ټولو هغه څه په اړه چې په ځوانۍ کې مو د ژوند په سترګه ورته کتل، اوس تر پوښتنې لاندې راځي او حقیقت ته رسېږو. ( همدا وخت دی چې حقیقت زموږ لاس پرېږدي.) ایا همداسې نه ده؟

له نوموړي لیکوال، ارټ باکوالډ نه پوښتنه شوې وه چې: «ستاسو په اند کامله خوښي او خوشالي څه شی ده؟» ځواب یې داسې و:

«سالم ژوند وکړه.» وروسته بیا ترې وپوښتل شول: «غواړې چې کومې ورتیاوې ولرې؟» ځواب یې ورکړ:«د ژوند کولو ورتیا.» یو ځل بیا یې ترې وپوښتل: «ستا تر ټولو ګران بیه شتمني څه شی ده؟» ویې ویل: «زما ټولې لیکنې، هغه ۳۲ کتابونه چې لیکلي مې دي او ټول مطالب مې چې نشر شوي دي.»

هغه درس چې موږ او تاسو یې له دې جملې نه زده کوو، څه دی؟ عظمت او لویوالی له هغه څه نه سرچینه اخلي چې په خپل ټول وس او توان سره مو خلق کړي دي. دا شیان نه یوازې دا چې له تاسو څخه غوره دي بلکې له تاسو تلپاتې او ابدي هم دي. حقانیت، په رسمیت پېژندنه، باور او مالي شتمني ډېر ښه دي او د هغه شیانو یوه برخه ده چې انسانان تل ورپسې دي مګر یو بل شی هم شته چې له دې ټولو څخه اړین دی او هغه نېک میراث دی. د بدلونونو راوستل دي، اغېزمن کېدل دي، د یو بې ساري شي رامنځته کول او خلق کول دي. یو له مانا ډک شی.

له ځانه داسې څه یادګار پرېږدئ څو راتلونکي نسلونه په دې پوه شي چې دلته اوسېدلی یې؟ کوم پلټونکي او جسورانه کارونه به ترسره کړې څو همدا اوس هغه عظمت چې په تا کې نغښتی دی، را وېښ کړې او د نن ورځې رڼاګانې ووینې؟ ستا تر ټولو ګران بیه

شـتمني بـه څـه وي؟ او پـه پـاى كـې دې لـه خپلـو ټولـو وړتيـاوو او استعدادونو سره څـه كـړي دي؟ هغـه لـه بركـت نـه ډک اسـتعدادونه چـې د يـوې ډالـۍ پـه بڼـه دركـړل شـوي دي، يـوازې غـواړم چـې پـوه شم.

---

**عظمت او لويوالی له هغه څه سرچينه اخلي چې په خپل ټول وس او توان سره مو خلق كړي دي. دا شيان نه يوازې دا چې له تاسو غوره دي بلكې له تاسو تلپاتې او ابدي هم دي.**

---

## ۱۰۰. د نېلسون منډېلا په خبر شئ

د نېلسون منډېلا په اړه مې يو په زړه پورې کتاب ولوست، هغه څوک چې زه يې ډېره ستاينه کوم، د راتلونکي په اړه د يو غوره ليد لوري درلودونکی کس، د ازادۍ د جګړې اتل، يو حيرانوونکی سر مشق او الګو. نوموړي درې تنه د زندان ساتونکي د ولسمشرۍ د پيل د لمانځلو د مراسمو لپاره سوېلي افريقا ته را وبلل. دې ته وايي بښنه.

غواړم چې د بېل کلېنټون يوه پيليزه درسره شريکه کړم، ځکه دا وينا له موږ او تاسو سره هغه لاره شريکوي چې له موږ سره په خيال او تصور کولو، له نوم اوعنوان پرته د رهبر کېدلو او د داسې انسان په جوړېدو کې مرسته کوي چې د خپل غوره والي لپاره ژمن و اوسو. په دې لاره بايد حرکت وکړو:

«هر کله به چې نېلسون منډېلا خپلې کوټې ته پر لاره و، موږ ټولو به دا احساس کاوه چې اوس ځانګړي او په امن کې يو، موږ ټولو غوښتل چې د درناوي لپاره يې ودرېږو، ټولو غوښتل چې ويې هڅوو ځکه چې غوښتل مو يوه ورځ دده په څېر شو.»

**نېلسون منډېلا يوه حيرانوونکې مخ بېلگه (الگو) وه او انسان ته دا ورښيي چې تر کومې کچې ښه کېدلای او پرمختگ کولای شي.**

## ۱۰۱. ایا نن ورځ به غوره وي؟

د دې کتاب د لوستونکو څخه یو تن نن د نړۍ پر لور قدم ږدي او داسې یو کار ترسره کوي څو راتلونکې مرحلې یعنې خپل عظمت او لویوالي ته ورسېږي. تاسو ته نږدې یو کس په راتلونکو څو ساعتونو کې پرېکړه کوي څو خپلو معیارونو ته ارتقا ورکړي او خپل پوټنشیل تجربه کړي. ستاسو په شاوخوا کې یو کس یو کار پیلوي، که څه هم دا کار به لوی نه وي خو د وخت په تېرېدو سره کولای شي په خپل ژوند کې بدلون او تحول راولي، د خپل ژوند په ټولو برخو کې تحول او بدلون. ولې دا کس تاسو ونه اوسئ؟ تر اوسه چې هرڅه درته ویل شوي دي، هېر یې کړئ. لنډ فکره متفکرینو ته غوږ مه نیسه، د نیوکه کوونکو غږ مه اوره، ځان حقیقت ته ورسوه، ژوند ستا د لویې لپاره پیدا شوی دی څو پر مخ لاړ شې او د خلکو پام در وګرځي. تر هرڅه لوړ شې او هر کله دې چې له دې جملې څخه (د څه لپاره پیدا شوی یې؟) سرغړونه وکړه، پوه شه چې له ځان سره دې خیانت کړی دی.

نو ځانته دې درناوی ولره، خپل ژوند او نن ورځ دې داسې تنظم کړه، چې هېڅکله به دې هېر نه شي. یو کوچنی ګام په لنډ وخت

کې لویې پایلې منځته را منځ ته کوي. دا دې باید په یاد وي چې په رښتیا څوک یې؟ او د څه لپاره پیدا شوی یې؟ د دې لپاره پیدا شوی یې چې یو بې نومه او بې عنوانه رهبر اوسې او هغه څوک وې چې ښه کړه وړه ولري. دا مطلب د مشهور فیلسوف مارکوس اورلیوس په کلماتو پای ته رسوم چې وایي: «هره ورځ داسې ژوند وکړه لکه نن دې چې د ژوند وروستۍ ورځ وي. بې غوره او بې پامه کېږه مه. گوښه والی مه اختیاره وه، دا ستا د شخصیت تکامل دی.» څومره ښه یې ویلي دي! انسان باید ځان انسانیت ته ورسوي.

**ځان حقیقت ته ورسوه، ژوند ستا د لویۍ او پرمخت لپاره پیدا شوی دی.**

پای